وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ

موندئ قرآن د نصیحت دپاره اسان کړیدے نو څوک شته چه نصیحت واخلي

میری قسمت سے الٰہی پائیں یہ رنگ قبول

پھول کچھ میں نے چنے ہیں انکے دامن کیلئے



# مقدمة

# تفسیرِ حبیبی پښتو


مصنف

مولانا حبیب الرحمن بن مولانا محمود الحسن صاحب

فاضل دیوبند، مولوی فاضل منشی فاضل

میاتریکولیت دار التصنیف رستم

ضلع مردان سرحد

حسن الرحمن



بکتابت عاصی عبد الودود قریشی بجوړی گیټ شهر پشاور

منظور عام برقی پریس پشاور کښې چهاپ شه

# پیشکش

په خدمت د روح اقدس حضرت محمّد
رسول الله صلے الله علیه علیه واله واصحابه
وازواجه وسلم فداه ابي وامي کښ کوم
که قبول شي نو څما به نیک بختي وي

جبیب الرحمن

# فهرست مضامین





بسم الله الرحمن الرحیم

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ اَنْزَلَ الْكِتَابَ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰی نَبِیِّهٖ اِلٰی یَوْمِ الْحِسَابِ وَعَلٰی اَصْحَابِهٖ وَاَهْلِ بَیْتِهٖ الَّذِیْنَ قَطَعُوْا عِرْقَ الشَّكِّ وَالْاِرْتِیَابِ۔ امابعد

## (۱) په پښتو ژبه کښې د قرآن شریف د تفسیر ضرورت

د پښتنو په ملک کښې په لکونو مسلمانان اوسیږي. په دے ملک کښې ډیر نیکان، دیندار خلق، مسلمانان نوابان د لویو علاقو جاګیرداران او بادشاهان موجود دي. خو دلته دے خبرے ته د چا خیال نه دے راغلے چه کینې د دوي په دے جائیداد ونو او دولتونو کښې څه داسے رقم هم بکار دے چه په هغې د دین اسلام تبلیغ او اشاعت او خاصکر د قرآن شریف تفسیر او ترجمے اوشي۔

خو دا یقین نه دے چه د دوي به دا خواهش نه وي او یا به په دے ضرورت او فرضیت نه پوهیږي شاید د دے وجه دا وي چه پښتنو عالمانو د نورو ملکونو د عالمانو په شان د دے اسلامي تبلیغ په باره کښې صحیح کوشش نه وي کړے. او دوي په خپل علمي، زباني او قلمي تبلیغ کښې څه

داسې خوک والې نه دي پیدا کړي چه په دې باندې مالداران
مال خرس کړي۔

یا چونکه ځوني پښتانه د علم په میدان کښې روستو دي
نو داسې عالمان لا نه دي پیدا شوي چه دا کار اوکړې شي۔ او چې
کوم عالمان دي نو هغوئ ته په پښتو ژبه کښې تفسیر کول یا اسلامي
کتاب جوړول عار ښکارېږي۔

خیر هرڅه وجوهات چه دي خو لدا ینه انکار نشي کیدې
چه ځوني د پښتنو په ملك کښې چه دا شپږ ضلع، بنیر، صوات
دیر، چترال، تناول او ټولې آزادې علاقې مهمند، افریدي
وزیر، مسیت او افغانستان دې۔ د دې خبرې خاص کې دې
چه دوئ سخه د قران شریف د پښتو کامل تفسیر نشته۔ پدې
وجه ځوني ډیر هغه پښتانه روڼه او خویندې مینه دي چه
په قران شریف مین دي او د قران شریف نه ځان خبرول
غواړي خو بې له پښتو نه په بله ژبه نه پوهیږي د قران شریف
نه بې خبره پاتې شو۔ د داسې لوې او ضروري کار د پاره د ډیر
لوي عالم بلکه د عالمانو د یو ټولګي ضرورت وو چه هغوئ یو
کامل تفسیر جوړ کړې وې لیکن هغه کله چه بل څوک صاحب دې
میدان کښې قدم کیښودل ضروري اُنه ګڼل نو ما سره د ځلې
کم علمۍ او عاجزۍ دې میدان ته را او دنګل۔ زه په دې

پوهیگم چه څه به یو طرف ته د تفسیر حق ادا نکړے شم او بل طرف ته به په لیکلو وچهاپ کښں داسے بنا ئست پیدا کول هم را ته ګران وی چه لوستونکے ئے په شوق سره ګوری خو ځما همت په دیوجه پیدا شوے دے چه ځما والد بزرګوار مولانا محمود الحسن صاحب مرحوم او ځما عزیز رور مولوی صاحب خلیل الرحمٰن مرحوم (خدائے پاک دِ دَ دوئ مغفرت نصیب کړی) د تفسیرو نو داسے کتب خانه جمع کړیده چه زه به د هغے نه فائده واخلم او د پښتنو د پاره به په پښتو کښں د تفسیر شوق پیدا کړم او که ما د پوره شدے ما نو لو سامان پیدا نه کړه نو یو کوتاه دوه خو به د مړی لونه ولو د پاره پیش کړم. (انشاء الله تعالیٰ)

د دینه علاوه ځما پر مهربان دوست ارباب حاجی نعمت الله صاحب چه څه په خپل شوق او څه ځما په ترغیب کتب خانه اوس اوس جوړه کړیده. د مالی امداد د پاره فی الحال د مرکزی تبلیغی جماعت چارسده ممبران دیر شوق ظاهر وی او په دے شوق کښں دی چه څه داسے کار اوکړی چه د خدائے پاک سخه پرِ قرب حاصل کړی۔

دا خو ظاهری اسباب دی حقیقی مسبب الاسباب خدای پاک چه هغه د هر نیک کار د پاره سببونه پیدا کوی پملئے

غیر معمولی احسانات کړیدي. د هغه نه امید لرم چه هغه به
خما د قلم نه داسې کار واخلي چه د مسلمانانو د پاره فائده مند
شي. او خما د نیوي او اُخروي مشکلات به اسان کړي.

اے خدایه! تا ته ښکاره ده چه خما مطلب ستا د دین
خدمت دے ستا پاک کلام هغه خلقو ته په پښتو کښ ښکاره
کول دي چه د پاک کلام زده کول غواړي خو بے د پښتو نه په بله
ژبه نه پوهیږي. که خما په اراده کښ کمزورتیاوې نو ته ئے
مضبوطه کړے او که خما په زړه کښ اخلاص نه وي نو ته پکښ
اخلاص پیدا کړے ته مشکلات اسانونکښ یے او ته خما د پاره
کافي یے امین.

## (۲) د قرآن شریف د تفسیر اصول

قرآن شریف د روح انساني د پاره یو ساده خوراک دے
څرنګ چه جسماني خوراکونه اول اول په خپل اصلي حالت کښ
د جسمونو د پاره ډیر مفید وُو او نن روح ئے اصلي حالت د نه پاتې
کیدو په وجه مفید خو پریږده چه بعض مضر ثابتیږي. هم
دغسې په اول اول کښ چه قرآن شریف په رسول ﷺ راته او د
دے اوریدونکو د رسول ملګرو هم په دغه رنګ کښ اوریدو
نو د هغوئ روحاني طاقت او قوت سل چنده څومره نه زیات

وو۔ په دغه وقت کښې د روحانیا تو حکومت وو۔ دا جسم، مال دولت او خپل خپلوان هرڅه د روحاني خوشالئ په مقابله کښې هیڅ وُو۔ په دغه وقت کښې سم ساده قرآن شریف وو۔ او زړونه دماغونه ورته هم صفا وُو۔ عربو چه کوم زنګونه نچپل روح کښې پیښ اکړي وُو۔ هغه د قرآن شریف په تعلیم لرے شو پیا د و ر و زړونه او دماغونه په خیر بینیدو اُلګیده یو طرف نه د ایران سره تعلق پیدا شه او ایراني خیالات عربو ته داغله بل طرف نه د روم سره تله راتله شو۔ او د دے ملك د خلقو خبرے اثرے د عربو سره شروع شوے۔ خاندانی جنګونه وطنی کوښښ او د خلافت په ځائے حکومتونه او بادشاهۍ شروع شوے په دے وجوها تو باندے د قرآن شریف اصلی او حقیقی شکل او نوعیت هم په مختلف رنګ کښې تبدیل شروع شو۔ یو طرف نه د یونان فلسفه راغل بل طرف ته نور علمونه د عجمیانو د پاره جوړ شو په دے وجه د علماؤ دل و دماغ به لدینه متاثر وو۔ او چه تفسیر ته به کیناسته نو قرآن شریف به ئے په خپلو مصنوعي علمو کښې کوت او خپل علمونه به ئے په قرآن شریف کښې کاته ددئ د بطلیموس فلسفي نظام، د سائنس ایجادات، د ستورو او د آسمان حرکات په قرآن شریف کښې لټول۔

دغه وجوهات وُو چه د قرآن شریف مرکزي مطلب چه چه صفا صفا حکمونه وُو په دے انساني قاعدو او علمو باندے کښې ورک شو د قرآن شریف تعلیم کښے هغه دلیلونه د هغه خطاب

او اشارے په خپل ساده رنګ کښې پاتې نه شوے۔ د ملک سیاسی او وطنی جهګړو هم مفسرین په دے مجبور کړه چه په تفسیرو نو کښې دے خبر وله ځائے ورکړی۔ د فقه د هر مجتهد یا مقلد په خپل مذهب سره د قرآن شریف آیتونه کتل د علم کلام هر ټولګی دا غوختل چه قرآن شریف د دوی ملګر تیا اُوکړی۔ صوفیانو خپل لاره په قرآن شریف کښې لټول۔ خلاصه دا ده چه د زمانے په اُلډ بدو سره د قرآن شریف په ساده ګئ باندے مختلف اثرات اُشو او دغه وجه ده چه کومه زمانه رسول علیه السلام ته نژدے وه د هغے زمانے تفسیرونه زیات اعتباری او په اصلیت جوړ دی۔ او څومره چه زمانه لرے کیده نو د قرآن شریف په تفسیر کښې نورے د انسانی علمونو خبرے ډیرے ځائے خو په دے کښې د حقیقت کے وو۔

ن روځ چه مونږ د یارلس نیم سوه کاله د حضرت نه لرے یُو او په مونږ کښې سیاسی جهګړے او وطنی شورو شر هم شروع دے د مذهب ستر ګئے هم بیکاره شو بدی او د مذهب رنګ را ته داسے خودلے شو یدے چه د مذهب په کار شرمیږو او د مذهب کارکونکی را ته سپک ښکاریږی مونږ ته د دے ضرورت دے چه خپل ځان د څه وخت د



د څه وخت د پاره د دے تولو خبرو نه خلاص کړو او دا
اوګورو چه الغرض زه پخپله څو نه یم بیا هم به څوک خالق
وی. او زه د خپل ظاهری جسم په پالنه کښی یوازے پخپل
علم خپل جسم نه شم ساتلے. زه د خپلے معدے د کارخانے
نه خبر نه یم چه هغه څه رنګ ځما سخت او نرم خوراک هضموی
نو دغه خالق به ځما د روح د پاره هم څه خوراک پیدا کړے وی
او د هغے خوراک په هضمیدو به ځما روح روغ جوړ پاتے کیږی
که ستا په دے یقین دے چه غنم او روجے د ظاهری جسم د
پاره پالونکے خوراک دے نو ته په دے هم یقین اوکړه چه
قرآن شریف د روح انسانی د پاره خوراک دے که د خاورو
خزلو نه ډک اوره ستا خوښ نه وی او په دے جسم په ځائے د
غنم والی ناجوړه کیږی نو ته دا هم اوپیژنه چه ستا د قرآن
شریف سره انسانی خبرے، علمونه او نورے وطنی جهګړے
یو ځائے کول ستا د روح د پاره دیر خطرناک خوراک دے
نه به دا کوشش کوم چه دا تفسیر د قرآن شریف ساده او
اصلی تعلیم کښی ښکاره کړم او تاسو په هغه بے ارامے او فکر
په مندے کښی وانچوم چه تاسو پریشان شئ او تاسو هم خپل
جوړ خیالات او فرضی عقیدے په دے تفسیر کښی مه ګورئ
ځو نو د پښتنو ملك اګر چه په دیرو خبرو کښی د نورو ملکو

نه خه دے خو دَ علم په میدان کښې ډیر زوستو دے غښتلی
دیرش کاله مخکښې به لوئی عالم هغه گڼړلے شه چه دَ فقه
یا دَ اصول فقهٔ دَ صرف یا دَ نحو دَ منطق یا دَ ریاضی کتابونه
به ئے لوَلوَل۔ دَ نوم دَ پاره هم چرته دَ قران شریف او دَ تفسیر
نه وو خال خال عالمان دَ قران شریف وُو۔ چه په هندوستان
کښې ئے دا علم حاصل کړے وو۔ دَ دے وطن دَ عالمانو به مخکښې
هغوئی دَ قران شریف او دَ حدیث نوم نه شه اغستے۔ ځما
والد بزرگوار مولانا محمود الحسن صاحب مرحوم یو داسے مستقل
مزاج شخصیت وو چه هغه خپل مال جائداد ئے اوزګے
پرېښو دے وے او دَ نورو علوموُ دَ کولو نه پس دَ قران او دَ
حدیث تحصیل په سهارنپور کښې اُکړه او په هغه خپل
مال او دولت ئے دَ قران شریف او دَ حدیث لویه کتبخانه
جوړه کړه او اول اول خپلو خپلوانو ته دا ثابت کړه چه
که په علومو کښې علم دے نو هغه دَ قران شریف او دَ حدیث
شریف علم دے دغه وجه وه چه دَ هغوئی اولنی شاګردان
عبد الصمد صاحب مرحوم چه دَ والد صاحب خواهرزاده وو
او دَ هغوئی اوخے رضی الله صاحب مرحوم او دوه نور نیکان
عالمان وو چه یو حافظ قرآن حافظ صاحب دَ غازی
کوټ وو او بل ګلستان مُلا صاحب مرحوم دَ سرے نه یے
وو۔ دوئی به شپه او ورځ په تفاسیرو او احادیثو کښې
درسونه او تکرارونه کول دا هغه زمانه وه چه په دے

کښې د مفسر او محدث د پاره ځای نه وو. قدرت
ته منظوره وه یو طرف ته د والد صاحب قوت ایماني وو او بل
طرف ته د خان صاحب شیر بهادر خان مرحوم شجاعت او
دلیري وه چه دا سلسله جاري پاتې شوه. ځونږ میین استی
کور په کوټرپان کښې وو چه د مشر خان نسیم خان مرحوم
او بیا شیر بهادر خان مرحوم وو. دوی په هره معامله کښې
د والد بزرگوار حمایت او حفاظت کړے وو او د هغوی هم دا یقین
وو چه عامه دنیا په غلطۍ ده. دا حقیقت دے چه اول قرآن او
بیا حدیث دے ورپسې نور علمونه دي.

د ترنګزو حاجي صاحب مرحوم چه لا هم دلته نه وو تلے هغوی
سره به ډیر عالمان ګرځیده په دے وطن کښې به هغوی کلي
په کلي وعظ کاوه ډولۍ به وتے او اسلامي مدرسے به
جوړیدے دوی ته بعض عالمانو شکایت اوکړو چه په کوټرپان
کښې یو ملا صاحب دے څه کلمے وهے خبرے کوي. په هغه
څه آواز پکار دے حاجي صاحب پخپله عالم نه وو عالمانو په مخه
کړ کوټرپان ته راغله. دیوشیخان وو کلے ویلے شوے وعظونه
کیدے شو او ځما والد بزرګوار سره په یوه خاص کوټه کښې هم بحث
جاري وو. په دے علماؤ کښې مولانا شاه رسول صاحب مرحوم د
بالاګړهۍ او د پلوډېرۍ مولوی صاحب مرحوم د کوډۍ قاضی صاحب

هم وو. دوئ په حقیقت کښې ځما د والد بزرګوار هم خیال ووځو
د عالمانو د حکمونو نه یریداه او صفا وینائې نه شوه کولے بحث
به دے ووچه ځمونږ د پاره اول اول کوم شے د عمل قابل دے د
والد صاحب بیان ووچه اول قرآن شریف دے بیا حدیث دے
او بیا نور علمونه دی "خیر حاجی صاحب مرحوم ته دا معلومه شوه چه دا
بحث اوګډ دے او دا عالم هم یریدونکښ نه دے په دے وجه
دا معامله بل وخت ته پریخودے شوه په دے بحث کښې
بعض عالمانو خپله اراده ښکاره کړے وه خوشیر بهادرخان
مرحوم د دے دیر سخت جواب ورکړے وو. په دغه وخت کښې ځما
عمر لس کال وو. زه د دے بحث په غرض نه پوهیدم او حیران به
وم چه دا عالمان ولے ځما د پلار سره هره ورځ په جهګړه ری چه
زه د دولسو کالو شوم نو والد صاحب دار العلوم دیوبند ته
ګیکلم ما پوره اته کاله هلته تیر کړه او فارغ شوم کلی ته راغلم
او په جماعت کښې م درس و تدریس د والد صاحب په اجازت
شروع کړه په دے ورځو کښې ځما کشران رونړه سیف الرحمن
او خلیل الرحمن مرحوم هم د والد صاحب د قرآن شریف تفسیر
او احادیث لوسته. څه روځے پس ځما کشر رور خلیل الرحمن مرحوم
هم دیوبند ته لاړه او هلته کښې ئے د احادیثو دوره اوکړه
چه بیرته راغے نو مونږ صلاح اوکړه چه مشرانو لیښتنو د

عالمانو د پاره څه ذریعهٔ معاش جوړه کړے وه چه څنګه د جماعتونو
سپیرې وے او س کښواتو پښتنو کښې دا قدر پاتې نه شه او د
عالمانو ذریعهٔ معاش د خلقو زکاتونه او خیراتونه شو
په دے ګذاره کول ګران دی راځي چه د مولوي فاضل امتحان
ورکړو. موږ دواړو وروڼو په ۱۹۳۳ئ سنه کښې د مولوي فاضل امتحان
ورکړو او پاس شو. ما په ۱۹۲۷ئ سنه کښې د منشي فاضل امتحان ورکړه
وو. او مرحوم په ۱۹۳۴ئ سنه کښې د منشي فاضل امتحان ورکړه او موږ په
سکولونو کښې ملازمت اختیار کړو. د تعلیم محکمه یوه ډېره اُزګاره
محکمه ده موږ به خپل فارغ وقت هم په دغه قرآن او حدیث کښې
صرف کاوه. او په چُهټو کښې به هُم دغه څُوږ مشغله وه

په دے دوران کښې راته معلومه شوه چه نن روځ په انګریزي
کښې ډېر ښه تفسیرونه شته خو موږ په انګریزي نه پوهېدو موږ
دواړو وروڼو انګریزي شروع کړه او په ۱۹۳۹ سنه کښې مرحوم او په سنه ۱۹۴۰
کښې ما میټرک پاس کړه موږ انګریزي تفسیرونه راوغوښته او
په هغې کښې مو مطالعه شروع کړه په اول اول کښې راته تکلیف ووخو
بیا د انګریزي لغت په امداد مو تفسیرونه او کتل څُوږ د دواړو
دا خیال ووچه که څه هم زموږ والد بزرګوار په صوبه سرحد کښې
د قرآن او حدیث آواز پورته کړے دے موږ له پکار دي چه
د قرآن شریف یو کامل تفسیر جوړ کړو خو خدائے ته به منظوره نه
وه والد بزرګوار مونږ له په اتمه د ذي القعده ۱۳۵۵ سنه کښې وفات شه
او ځما خوږ رور او متعلم ملګري خلیل الرحمن مرحوم په ۵ رجب ۱۳۶۳ سنه

کښې څوښ رفاقت پریخود او عالم جاویدان ته لاړه ۔ مرحوم په اخر کښې ملازمت پریښودے وو او په خپل حجره کلي رستم کښې ئې د قرآن شریف درس ماسخوتن شروع کړے وو په دے کښې شلو پنځوس سوداګران نوجوانان شامل وو دے درس روح روان حاجي غلام حسین صاحب او سید غواص باچا صاحب دے د مرحوم د وفات نه پس مادرس شروع کړو او وس ځما په غیر حاضری کښې مولانا محمد حسن صاحب قبله سره د ناجور تیا دا درس جاري ساتلے دے ۔ خدائے پاک دے دا سلسله جاري اوساتي او مونږ دے په قرآن عالمان او عاملان کړي

د دے دومره تفصیل نه ځما مطلب خپل تعریف نه وو بلکه ما داغوښتله چه په تا سو دا خبره ښکاره کړم چه ځما د قرآن شریف او احادیثو سره محبت شته او په دے رنګ کښې ځما تربیت شوے ځوښ روزانه ژوند والد بزرګوار د اسے جوړ کړے وو چه صرف قرآن او حدیثا ځوښ د ژوند اصلي مطلب ګرځیدلے وو ۔ دغه وجه وه چه ما خپل ملازمت کښې هم دا کار خپل اصلي کار ګڼړلے وو ۔ په کوهاټ کښې د انجمن تعلیم القرآن په درس کښې ما درس ورکاوه په لکی مروت کښې مادرس قرآن شریف شروع کړے وو ۔ او په چارسده کښې خوځما د درس قرآن شریف نه علاوه د جمعې خطبے او تبلیغي جماعتونه جوړول ښه مشغله وه ۔

په پنځله ولیشتمه د ذوالقعدې سنه ۱۳۶۲ھ زه خدائے پاک د ملازمت نه فارغ کړم او اوس هغه وخت راغے چه زه د خپل عمر هغه سودا او باسم. خدائے پاک پما دا لوئے رحم کړیدے چه ځما ځامن یو ځوئے دے محبوب الرحمٰن چه د مولوی امتحان کښې پاس شویدے او د مولوی فاضل کتابونه ئے خلاص کړیدی اوس ځکه ندا ری کوی او زه ئے فارغ کړے یم خدائے پاک دے دده په کار کښې برکت واچوی آمین.

ځما د ااراده ده چه زه خپل باقی عمر په ځائے د دے چه تقریرونه او زبانی بحثونه کوم. د قلم په ذریعه د اسلام خدمت اوکړم. ځما د الله تعالیٰ نه دا پوره امید دے چه هغه به ځما امید ادا وکړي او څرنګه چه ځما تیر شوے ژوند هغه د ډیرو خلقو د پاره قابل رشک ګرځولے دے ځما دا پاتے ژوند به هم دغه شان کړی او چه خدائے پاک د چا لوی نو د هغه هیس غم نشته. اے خدایه! ته هغه اسباب پیدا کړے چه زه پورے ستا د دین خدمت اوکړم آمین

# الله تعالیٰ او پیغمبران

داموجوده زمکه اسمان او پکښې ټول مخلوق څه په عجیبه
طریقه سره خپل خپل وخت تیروی او موږ ته د خدائی د
وجود او د لوئی والی ثبوت راکوی کوم چې کله د یو صندوق په
لید وسره هر یو اُخیار او کم عقل په دے خبره منلو مجبور
دے چه د دے صندوق جوړخت بچپله نه دے شوے
بلکه د دے جوړو نکښ ضرور شته او چه څانګه او مضبوط
دی نو موږ په دے هم قائل شو چه دا کار یګر ډیر اُخیار
دے دغسے موږ د دے لوئے کارخانے او د دے بیشماره
مخلوق په لید و سره په دے خبره مجبور یو چه داسے اُوایو
چه د دے خالق الله تعالیٰ موجود دے او د دے مخلوق
دا بنا ښته انتظام موږ په دے مجبوروی چه هغه الله
ډیر لوئے دے دا اواز د هر انسان د زړه نه را اوځی او د
دے اثر په هر هر رګ کښې ښکاریږی هم دینه قران شریف
اشاره کوی چه

فِطْرَتَ اللّٰهِ الَّتِیْ فَطَرَ النَّاسَ عَلَیْهَا

انسان د دنیا په مخلوقا تو کښې ډیر اشرف دے د ده جوند
د نور ټول مخلوق نه په بل رنګ دے که څه هم دوی ته د ورل
سکل د ژوند مقصد کرزی نو انسان لد بینه ډیر زیات
لوئے مطلب لری ده ته خدائے پاک عقل ورکړے دے

دده په ذریعه انسان په ټول مخلوق حاکم دے پدے عقل
دے مختلف مشینونه او علوم ایجاد کوی خو داسے هم نده
چه کینے عقل یوازے د انسانی کمال د پاره کافی دے انسان
ته بچپل ژوند کښ داسے حالات هم پیش راځی چه عقل په
کښ اک بک شی ته نه کورے چه عقلمند انسان د مړی نه
یریکی په قبرستان چه د شپے ورځی نو زړه یے دپیږی پس
هر کله چه څومره عقل به داسے بشکاره خبرو کښ عاجزه کیږی
نو کوم څیزونه چه موږ هغه نه وینو په هغے کښ خو به عقل
ضرور خطا کیږی د خدائے ذات او صفتونه څومره مړلی او
ژوند پس د مړلی نه ژوندی کیدل او بیا ثواب او عذاب
داسے کران او پټے خبرے دی چه د لوئے نه لوئے عقل هم
به دے یوازے نه پوهیږی دغه وجه ده چه خدائے پاک
د عقل وامداد د پاره خپلو بنیکو بندګانو ته د دے خبرو
خو د نه آکره چه هغے ته القاء الهام او وحی وائی عقل به هم
خپل کار کوی خو چه عقل عاجزه شی نو د خدائے د تعلیم نه
به فائده اخلی او هغے ته به سر کدی داسے به نه کا و وچپلو ځ
بچپل عقل غاوره شوا دهره خبره په عقل سره کوروا او چه
څومره پدے پوره ورکی او محدود عقل کښ رانشی نو کینے انکار
به نه اکره . داعقل د نورو خلقو خو پریکده لک خپل عقل ته

او هوره چه سحر یوے خبرے نه معقوله او خه وایے او ماسپخین دغ خبرے نه نامعقوله او غلط وائی دعقلمند کتابونه
آکوره چه کله وائی اسمان کوځی ځمکه ولاړه ده کله وائی اسمان نښته او ځمکه کرځی. څوک وائی انسان د جوړے نه پیدا دے څوک وائی
چه انسان د شادو ترقی یافته شکل دے دغسے نورے ډیرے د یو بل سره مخالف خبرے دی په دے وجه پیدا سے خبرو کښی چه
ځونږ عقل ورته نه رسی او ونیچیل عقل یا د نورو عقلمندو په عقل اعتبار مکوه او د عقلونو د خالق خدائی په کتاب کښی د
هغے حقیقت اُگوره۔

رحیم خدائی بے بداله بے غوښتنے د هر مخلوق د پاره عموماً او د انسان د پاره خصوصاً د تربیت سامان پیدا کوے
دے انسان پدے ندے پویه چه په یوه وړوکے دانه کښی تو له ونه پکوم حکمت رانغښتے پرته ده او په کوم رنګ دا تنیخ کیږی
لو بیږی او میوه داره کیږی انسان چه خوراك اُخری نوبیا ئے نه هم نه دے خبر چه دا څرنګ هضمیږی او ځما ده وکی، سر من
وینه او نور اندامونه په څرنګ غټیږی او پرورش بیامومی دغه رحیم خدائی بے ځونږ د غوښتنے ځونږ روحانی ضرورت او د روح
تربیت ته اُوکتل او د الهام او د وحی پاران د پیغمبرانو په زړه او ورد او د تورات، انجیل، زبور او قرآن شریف میوه داره

ونه ئې پکښ په خپلو شانونو قدرت نو نو سره تبغ کړه لو یه شو میوه داره شوه جوند ورو حو نو په خپل ځان مور کړه خپل روحانی اندامونه ئې په عنت او تړو تازه کړه او د عقل کمزور نیا یې په دے وحی او الهام باندے لوے کړه د پیغمبران په تابعداری کښ خلق هادیان امامان صدیقان او شهیدان شو دے خلقو خپل جسمانی ژوند او خوشحالی د د نیا عزت او مالداری په روحانی نو شائې بدله کړه خلقو ته رشتیا ویل په خدا خلاق پیش راتلل د تر څے خبرے په خوله کښ جواب ورکول د د وی روزانه عمل وو دوی خلقو ته د عالم اخرت هغه گران مسلے حل کړے او سترې عقلو نه یې په ارام کړه. د پیغمبرانو دا کار نه وو چه کینے هغه د هوا او د وریځ د بجلۍ د زلکے د اسمان او د باران د زلزلے وغیره حقیقت خلقو ته ښکاره کړی د دوی دا کار نه وو چه د تیر وشو و خلقو بے مطلبه تاریخونه او قصے بیان کړی البته د عبرت او نصیحت د پاره د بعضو پیغمبرانو قصے تیکرے چرته دیرے او چرته لگے بے د څه ترتیب نه بیا ندوی په دے بیان کښ تاسو ته دا یو څو خبرے معلوے شوے.

(۱) د خدائے تعالیٰ وجود (۲) د خدائے تعالیٰ صفات (۳) د پیغمبرانو رالیکل (۴) د پیغمبرانو صفتونه (۵) د پیغمبرانو کارونه

# مُعجزې (۴)

هر پیغمبر چه دنیا ته راغلے دے نو د هغه نه بعض داسے کارونه شوی دی چه هغه څونږ د روزانه معمول نه خلاف وی پیغمبران وی خو انسانان. لیکن د هغوئ د روح صفائی په دومره لویه درجه کښ وی چه هغه د خلقو په عقل کښ نه راځی. تاسو اُګورئ چه په موجود دنیا کښ یو څو غټ څیزونه مونږ کار کونکی وینو اُ به هم بیګی آس هم زغلی د اور ګاډے هم تیز زی. هوائی جهاز هم غورځی او د بجلئ په ذریعه د زرګونو میلونو خبرے هر ځائے کیږی کو مونږ پرلګ فکر اوکړو نو را ته به معلوم شی چه په رفتار کښ دا فرق په دیوجه دے چه یکوم شی کښ جسمانیت دے د هغه رفتار کم دے او یکوم کښ چه لطافت او نورانیت دے د هغه رفتار زیات دے زیات او کم نه دیر زیات دے.

دغسے یو ځما او ستا روح دے بل د یو مجدد، مجتهد او ولی الله روح دے او د ټولو نه زیات لطیف نورانی او پاک د پیغمبرانو روح دی د چلے وینا او کلام اثر او کوره او د پیغمبرانو وعظونه یاد کړه د هغوئ روحانی قوت ته سپو بشئے سلام کوی ونے ورله په یوه اشاره راځی یو کوټه اُبه د ده په لاس چینے سے بیکی وغے او کښے ورسه خبرے کوی د دوئ په دُعا مړی ژوندی کیږی رانده جوړیږی

که ته د اُش منده د کا دی نه کمه وینې د هوائي جهاز سفر د ریډیو
د بجلئ نه کم دے او پداے پوئ یے چه د دے وجه جسمانیت او
نورانیت دے نو تا ته د دے خبرے په پوهیدو کښ کوم مشکل دے
چه څومره د روحونو نه د پیغمبرانو ارواح ډیر پاک او ډیر لطیف دی ځکه
وجه ده چه د هغوئ تصرفات او طاقتونه د نورے دنیا د خلقو نه
زیات دی او دغه کارونه چه زه او ته پدے میدان کښ شل یو
او د دے د هغو نه عاجزه یو معجزه ویلے شی ؛

د پیغمبرانو علیهم السلام نه معجزے د یو څو فائدو د پاره ضروري دي

(۱) چه عام خلق پوهے شی چه دا نبی په رنګ شکل کښ څومره عوندے
دے لیکن د ده روحانی اثرات او تصرفات څومره نه ډیر زیات دی
بیا یو جه ډیر مغروره د دوی د حکم تعمیل شروع کړی۔

(۲) کله کله په معجزو سره عامو خلقو ته فائده رسول غرض وی لکه
د حضرتؐ په لاس کیخو دو د اُبو ډیرولے او د تلو تنده ماتیدل (۳)
کله معجزه د منکرانو د پاره عذاب او د نورو خلقو د پاره نصیحت
وی لکه د پیغمبرانو په دعا سره صورتونه په بله نمونه کیدل او
په یو موټی کانړو باندے د خلقو ستر کے ړندیدل

معجزے ته په قرآن شریف کښ اٰیت یعنی د پیغمبرانو د لوئي او د
صداقت نخه ویلے شوے ده هر بادشاه د خپلو استازو د پاره
څه نخے جوړے کړے وی او د هغه آستازي هم پد غه نخو پیژندے

شی هم دَ دَغ نخو په وجه دَ استازو ادب کیږی دَ هغه وینا دَ
بادشاه وینا گڼل شی دغه وجه ده چه دَ بے نخے استازی په
وینا باندے شک کیدے شی او دَ هغه حکم منلو ته څوک طیار
نه وی. پیغمبران دَ خدائے استازی دی او دَ دوئ سخه ځاکر ورداسے
نخے بکاردی چه دَ خدای پته پر لگی۔

په دنیاکښ بادشاهئ په جسمونو دی الله دے وجے نه دنیاوی
بادشاهان دَ خپلو استازو په جسمونو باندے خاص قسم وردئ
سپیئ او تمغ گلدی او دَ خدائی پاک بادشاهی دَ جسمونو نه علاوه
په روحونو هم ده او روح انسانی په حقیقت کښ یو قابل قدر شے
دے پد یوجه خدائے پاک خپلو استازو له روحانی نخے ورکړے
دَ دے استازو دغه روحانی تصرفات پاکئ او نورانیت ته معجزه
ویلے شی او دَ دے په لیدو سره خلق دَ دوئ حکمونه منی

پد نیاکښ دلسے باغیان دَ همیش دَ پاره وی چه په دے خه
پوهیکی چه دا دَ بادشاه استازے دے او دا دَ بادشاه دَ طرف
نه په دے استازی کښ نخے دی لیکن باغی ورته وائی چه نه دا
نخے منم نه تا منم نه دے بادشاه منم

هم دغسے په هره زمانه کښ چه پیغمبران راغلی دی. نو
زو
هغوئ په دے نخو سره قوم ته دَ خدائے حکم رسوی کَ دے استا
په جوند کښ یو خاص کشش وی دَ دوئ په کلام کښ خوږ والے وی

نرمی او محبت وی د هغوئی جوند ناست ولاړه خبرے اترے نورے
په قاعده وی لیکن بیا هم باغیان د معجزو د هغوئ نه د هغوئ
د ذات نه او د خدای د بادشاهئ نه انکار کوی. په معجزو پورے
ټوقے کوی. په پیغمبرانو باندے خاورے ټلی د هغوئ په لار و
کښ ازغی خوروی هغوئ په غرونو کښ قید وی د وطن نه یے
شړی تردے حده چه بعض باغیان دوئ وجنی پدے نافرمانو
او گستاخو باندے د پیغمبرانو وعظونه او نصیحتونه نه بندیگی
او د خدائے د احکامو تبلیغ با قاعده کیږی

په دے باغیانو کښ اول نافرمان مالداران او قامی مشران
وی او دغسے د دنیا د پاره علم کونکی خلق په عقل غاوره عقلمندان
وی او د دے وجه داوی چه د پیغمبرانو په منلو کښ دوئ د خپل
دنیوی عزت فنا وینی د دوئ فرضی لوئ په خاورو کښ خښیگی د دوئ
شان و شوکت ته نقصان رسیگی دوئ غواړی چه خلق مونږ ته
سجدے کوی څوک هر جائز ناجائز حکم منی او د پیغمبر په منلو کښ
د دوئ دا خدائی ماتیږی د هغوئ په حکمونو کښ د خه او د بد
تمیز پیدا کیږی.

دا باغیان او بغاوت یوائے د پیغمبرانو په زمانه کښ نه
وی په هره زمانه کښ باغیان موجود وی او س هم په لار کوڅه
بازار حجره کښ ناست ولاړ په ظاهر کښ سپین روږی د ولیان
د عزت نمونه لرونکی مشران او ځوانان او کوری د دوی خبرے
واوریئ نو تاسو به پوی شئ چه دا هم هغه د زړو باغیانو عزیزان

دی خدائے پاک دے ورته هدایت اوکړی آمین

## ملائکے

ددے دنیا ترقی یافته او قابل تعریف مخلوق انسان دے
بیا په انسانانوکښې انتهائی لوئی لوړ ونکښې څو لکے د پیغمبرانو دے
مونږ له دا خیال نه دی کول پکار چه بس که دنیاده نو بس دا
دنیاده او که څه مخلوق دے نو صرف همدغه دے چه
څومونږ په نظر راځی ددے نه علاوه یوه بله دنیاده چه هغه
مونږ نه وینو هغه خالص مخلص عالم روحانیت دے او ورشتیا
خو داده چه دنیا که ده نو همدغه ده بیا دے دُنیاکښې یو
قسم مخلوق دے چه په هغوی کښې ډیرے ترقی یافته ملائکے دی
څومونږ دا عقل ډیرڅه څومونږ د گمراهئ سبب جوړیږی. دا عقل ډیر
څله مونږ ته وائی چه ما دا څیز لیدلے نه دے زه خو دا نه منم
کله وائی لس دا منم چه موجود دی او نور هس نشته دے عقل څه
مُده مخکښې وے چه په دے دنیاکښې صرف سلو عنصرونه دی
اور، او به، هوا، او خاورے نور هیس نشته لیکن اُس عقل وائی
چه پدے کښې ما غلطئ اُکړه. عنصرونه سل خو دی. چه ورځ
تیریږی نو د عقل وزن، طاقت او علمیت خطائی او محدود والے
معلومیږی په دی وجه مونږ دے نتیجے ته رسو چه عقل څومونږ د پاره

ږیوه ده خو د دے رڼړا په میلونو کښې خوره نه ده ډیر ډیر لږ شل قدمه کښې دا رڼړا رسیږي. د څکښې د پاره بله رڼړا پکار ده چه د نور سپوږمۍ مے پښان وی. د غ رڼړا ته قرآن شریف وائی. خلاصه دا ده چه ملائکے د مختلفو کارونو د پاره خدائے تعالے مقرر کړیدی (۱) زیری ورکونکے ملائکے لکه حضرت ابراهیمؑ ته د ځوئے زیرے ورکونکښې ملائکے (۲) عرش اوچتونکے (۳) د خدائے تعالے او د رسولؐ پر مینځ کښې خبرونه رارسونکے ملائکے (۴) د قیامت نه مخکښې شپیلئے وهونکے ملائکے (۵) د مخلقو نه روح اخکونکے ملائکے (۷) د خلقو عملونه لیکونکے ملائکے (۸) د خدائے د دوستانو مدت کونکے ملائکے وغیره

# جِنَّاتْ او شیطان

په قرآن شریف کښې د دے پټ مخلوق هم ډیر ځایه ذکر دے قرآن شریف د جِنَّاتُ داسے تعریف کوی چه خَلَقَ الْجَانَّ مِنْ مَّارِجٍ مِّنْ نَّارٍ. ما پیر بیان د اور د شغلے نه پیدا کړی دے دے نه معلومه شوه چه جِنَّات ځونږ غوندے وجود لرونکے مخلوق دے چونکه په موږ کښې ځا ورسیوالے دے ځکه موږ بل رنګ یو او پیر یا نو کښې اور دے پدے وجه هغوی د لطافت پوجه په نظر نه راځي په جِنَّاتو کښې د خیراو د شرطانتو نه دوراه

شته . ملائکے یو اخ د نیکئ صلاحیت لري او شیطان د ظلمت
په وجه یو اخ د شر طاقت لري دغه وجه ده چه ابلیس د ادم
په مقابله کښ دا ولي ووچه خَلَقْتَنِيْ مِنْ نَّارٍ وَّخَلَقْتَهٗ مِنْ طِيْنٍ خدا
تازه د اور نه پیدا کړے یم او ادم د دے د خټو نه پیدا کړے دے
زه کله هغه ته سجده کوم؟

د دے جنات نو ډیرا قسام دي کوم چه د بني ادم سره او سیږي
هغه ته عامر او همزاد وائي او کوم چه واړه تنکوي هغه ته ارواح او
بهوت وائي او سخت تکلیف ورکونکي جنات ته شیطان وائي او
چه د دے نه هم زیات ناکاره وي نو هغه ته مارد وائي عفریت
د دے نه هم زیات دے او چه په زنګلونو کښ اوازونه کوي هغه ته
هاتف وائي دغسے د دے ډیرا قسام دي په قرآن شریف کښ د
انسان سره ډیرځایه د جنات ذکر دے لکه وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَ
الْاِنْسَ اِلَّا لِيَعْبُدُوْنَ ، يَامَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ د دے نه علاوه یو
مستقل سورت جن په قرآن شریف کښ موجود دے .

ځوني د مغرب تعلیم یافته او په یورپي تهذیب عاشق خلق
په ځینو تفسیرونو شعرونو او مجلسونو کښ د جنات نه انکار
کوي هغوئ د دے صفا او صریحو ائیتونو د جواب نه قاصره
دي د دوي د انکار لوئے دلیل دا دے چه موني پیریان نه
وینو خلکه نشته او هرا هُښیار پدے پوهیږي چه ځموني یو شے نه
لیدل د هغه شي د نه والي وجه نه شي کیدے .

په صحیح بخاری کښ عبدالله بن مسعود رض یو واقعه بیانوی

چه ده حضرت سره باهر لارم حضرتؐ هلته جا ته وعظ کاوو
او د هغوئ د طرف نه داسې ویلې شو چه خپل امت ته دې
او وایه چه په اډوکو او سکارو دې استنجا نه کوی ځکه چه دا
زمونږ خوراك دې دې فرمائی چه خبرې راتلې او ما څوك نه لیدل
د جناتو ذکر په تورات انجیل کښې هم شته

د غه شیطان یو مستقل وجود لری د ده د سجدې
نه انکار د ده د جنت نه په ذلت سره وتل چه فَاخْرُجْ اِنَّكَ مِنَ
الصَّاغِرِيْنَ اوزه شیطان تاله دلته تکبر بکار نه دې او بیا د
ده نیغ جواب چه اَنْظِرْنِيْ اِلٰى يَوْمِ يُبْعَثُوْنَ خدایه ما تر قیامته
ژوندې پریګده او د بدل اغستو د پاره داسې ویل چه فَبِمَا
اَغْوَيْتَنِيْ لَاَقْعُدَنَّ لَهُمْ صِرَاطَكَ الْمُسْتَقِيْمَ خدایه! تا زه د
ادمؑ په وجه ذلیل کړم خو زه به د ده د اولاد په لاره
کښې کینم او دوئ به غلط کړم او بیا خدائے پاك وائی چه اِنَّ
عِبَادِيْ لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَانٌ ځما په نیکو بندګانو ستا اثر نشی
کیدې ـ

دا داسې صفا صفا سوال و جواب او د شیطان د مستقل
وجود ثبوت دې چه مونږ به خوا مخواه دا منو چه زمونږ د دې
بنکاره محسوس دُنیا نه علاوه بله دُنیا هم شته چه په هغې کښې
قسما قسم مخلوق دې د دغه مخلوق زمونږ سره د خیرا و د شر تعلقات

کل ملائکې څونې په خپر را تلو کښې دي شیطان او بعض پېریان د انسان دشمنان دي د شیطان د بچ کیدو چه کومې ذریعې خدای پاک او رسول خولې دي هغه کول پکار دي او په کومه ذریعه چه ملائکې څونې ته زیات امداد کولې شي په هغې عمل پکار دے

# په دې باره کښې زیاتې یا او کړې

کم‌تر انسانان د زیاتي کې نه بچ دي. څوك خو هم دا سې په محبه اغښتي دي چه هر د ماغي بیماري ته پېریان والي او چا ځان ته پېریان جور کړي دي د غیبو خبرو نه ورکوي او وهمیان پرې یقین کوي او څوك د دې درجې ته منکران دي چه د جنات د وجود نه منکر دي او والي چه کوم اشیاء محسوس نه دي هغه موجود نه دي دا خلق په حقیقت کښې پیغمبران، اولیاء معجزې کرامت، جن، ملائکې او شیطان نه مني دا وهمیان چه د یره ترقي اوکړي نو د الحاد او د بې دینۍ په کنده کښې خکاره سرکشي د خدای نه هم انکار اوکړي ځکه چه هغه څو هم نه ښکاري. دا خلق په یورپ کښې ډیر دي. او څونې په ملك کښې د یورپ پرورده هم په دې مرض کښې لك یا ډیر گرفتار دي دا دواړه زیاتې اوکې د انسان د پاره بد دے د دې په مینځ کښې د اسلام تعلیم دے چه هغه په قران شریف کښې موجود دے د قران شریف په کتلو پوهیا لو به سړے سړے شي کوم انسان چه کله د یو بحث په تندی لګوي او کله د تبل په تعریفو نو ځان ساتړے کوي. او خدای رسول

دَ هغه کلام او دنیا له کوی ئې اونه یې مني دا انسان دین په خطا دے
خدائے پاك دِ مونږ هغه نیغ لارے ته توجه پیدا کړي. کومه چه
خدائے پاك او دَ هغه رسول صلے الله علیه وسلم مونږ له راوړیده
امین

# جنت او دوزخ

مونږ په دنیا کښې روزانه وینو چه دَ اشیاءُ جدا جدا اثرونه دي دَ
اورا ثر گرمي ده دَ زهر وا ثر گرمي او خنکي ده همدغسے انسان چه کوم
خه یا بد کار ته کوي هغه هم بے اثره نه وي دَ هر انسان عمل دَ یو
تخم په شان دے تخم که دَ پوروکے وي چه په خمکه کښې اُگوله شي
نو دَ هغې نه لویه ونه جوړه شي گلونه میوے او دې سوري پیدا کړي
که دا تخم دَ بنې ونې وي نو بنه ونه ترے پیدا شي او که دَ کیکرانو او
دَ زوزانو تخم وي نو کیکران او زوزان دَ ازغو ډك ترے پیدا شي. دَ
کیکو تخم په هیس انساني کوشش مالټه نشي جوړیدے او نه دَ مالټے
نه دَ غزو نه جوړیګي۔

دَ نیکو عملونو مختلف اثرونه او شکلونه په عالم مثال کښې بنکاریږي
په حدیث کښې راځي چه څوك سورهٔ بقره او سورهٔ ال عمران تلاوت
کوي نو دے به دَ وریځے په شکل کښې دَ قیامت په روځ راشي او دَ
تلاوت کونکي شفاعت به کوي بل حدیث دے چه دا دُنیا به دَ
قیامت په روځ دَ یوے بدائ په شکل کښې راوستے شي بل حدیث دے
چه دَ ځنکدن په وخت کښې هر انسان یوه ملائکه وینی چه دَ هغې په
لاس کښې رحیم یا بوری وي او په قبر کښې به ملائکے مری سره راځي

او سوالات به ترکوی خلاصه دا ده چې هر کله بنی آدم دا د جسم
جامې اُو باسي نو د ده هغه عملونه به په بڼه او ناکاره رنګ کښې ښکاره شي
د ده ښه اعمال به د خوشبویو بڼو بادونو او رنګارنګ نعمتونو په شکل کښې
اُلیدے شي او ناکاره عملونه کنجوسي ناروا شهوتونه او اخلاق رذیله به
د مارانو لړمانو په شکل کښې راشي د نیکانو د پاره به د خوشالۍ عالم
وی چې هغې ته علیین والې او د بدانو د پاره به د غم ځائے وی چې هغې ته
سجین والې. خوبونه وهمیان او د دین د حقیقت نه بې خبره خلق دا خبرے
نه مني او بعض په دے خبرو پورے توقے کوی حال دا دے چه خوبونه په
روزانه ژوند کښې د دے په ثبوت مثالونه ډیر شته دے.

د چا په طبیعت کښې چې صفراء ډیره وی نو هغه اور په خوب کښې
ویني چې پرے سوزي او کله کله په دے یره کښې لوئے لوئے چغې وهي. جاری
د کټه نه تختي د چا په طبیعت کښې چې بلغم زیات وی نو هغه دریابونه په
خوب کښې ویني او چې څوک ځنګیالے وی نو هغه درندګان او لیوګان په خوب
کښې ویني چې دوی را ویره شي خولے پرے راماتے وی بے اختیاره توبے اُو باسي
چې چاته دا ذکر اُکړي نو هغه ورته والې چې دا هسے خیالی خبرے دی حال
دا دے چې هغه بالکل حقیقت وی. خوبونه د بیدارۍ عالم د دغه حالاتو
نه د خبرې ذریعه جوړه شي لیکن چې کوم خلق مړه شي او بیا ورله د دغه
جوند بیدارۍ نه وی نو هغه چې په دغه عالم کښې هرڅه ویني هغه حقیقت
وی د هغې په لیدو خوشالی هم وی او غم هم وی

داحالت به په عالم برزخ کښ چه قبر دے مختلف مختلف وي چه د قیامت ورځ شي نو د خلقو ښل او تکبر د غسے نورے بد کارئ به د دے په شا کانو سورے شي. نامهٔ اعمال به خلق بیاموي او سخت یا نرم حساب کتاب به شروع شي.

اسلامي شریعت به د پل صراط په شکل کښ ښکاره شي او کوم خلق چه په دنیا کښ څرنګ سلوک د شریعت سره کوي هم هغسے به د دوی په پل صراط تیریدل وي د چا د شریعت سره ډیره مینه وه نو هغوئ به داسے تیز لار شي لکه په یو پل چه هره روځ یو سړے تیریږي او په تلو کښ نه ډیپکي نو مو خلقو چه د شریعت سره تعلق نه وي پیدا کړے د هغوئ به په دے پل روجے کن اروی لدے وجه نه هغه به ځکه ورنه شي تیریدلے. او څوک چه لږ ډیر د شریعت کار و نه کوی هغوئ به په کمه و ده حالت کښ تیریدل نه کوي پدے رفتار کښ به څوک د زړه اخلاص څوک د پاره یوه رنړا وي او څوک نیک عملونه به څوک سورلی وي

د رسول علیه السلام عام فیض او مهرباني به د "حوض کوثر" په شکل کښ ښکاره شي او چا چه د حضرت صلی الله علیه وسلم د سنتو مبارکو څومره څومره محبت ساتلے دے هغه به لا ډیره سیرابي حاصله کړي او چه تنپل عمر کښ دوی د سنتو سره تعلق نه وی پیدا کړے هغه به تږي ګرځي او د دینه به محروم وي

دَ خدای رحمتونه او نعمتونه به دَ جنت په شکل کښې څکاریږی

ځوئنږ دَ پوهې دَ پاره دَ جنت نعمتونو له دَ دنیا دَ څه اشیاءُ سره

تشبیه ورکړې شویږ، اګرچه دَ دنیا دَ اشیاء به دَ هغې سره صرف

دَ نوم برابرتیا وی. حقیقت به دَ جنتی اشیاءُ دَ دنیوی اشیاءُ نه ډیر زیات

وی. دَ هغې وخت زمکه اسمان به بل وی خدائے پاک وائی چه

یَوْمَ تُبَدَّلُ الْاَرْضُ غَيْرَ الْاَرْضِ وَالسَّمٰوٰتُ

دَ دې دغه روح به ځکه او اسمانونه دَ دنیا دَ زمکے اسمان نه بدل رنګ وی

بله وجه دا ده چه تا سو دَ دې ځائے پیدا او دَ شراب حور او غلمان میوے

او محلونه په هغه جنت محل کوئ. دَ هغه جنتیانو خواهشات به هم

دَ دې خواهشاتو غوندې نه وی بله دا چه دَ موجوده دنیا شراب

خانے او دَ عیش سامانونه چه موږ ډلته جوړ کویږ دَ جنت دَ هغې

سے نه وی. دَ جنت دَ شراب متعلق خدائے وائی

لَا يُصَدَّعُوْنَ عَنْهَا وَلَا يُنْزِفُوْنَ

دَ جنت شراب به دردِ سر او بے هوشی نه پیدا کوی او دَ جنت دَ

عامو نعمتونو په باره کښې ارشاد نبوی صلے الله علیه و سلم دے

چه لَا عَيْنٌ رَأَتْ وَلَا اُذُنٌ سَمِعَتْ " دَ جنت هغه نعمتونه نه سترګو

لیدلی دی او نه غوږو نو اوریدلی دی

په جنت کښې به لوئے نعمت دَ خدائے پاک دیدار وی او ځوئنږ دا

ډیر محدود عقل چه دیره لګه رڼا لری په دے نه پوهیږی چه دَ

جنت دَ نعمتونو حقیقت به څه وی او دغه وجه ده چه خدای پاک

والی چه

فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّا أُخْفِيَ لَهُم مِّن قُرَّةِ أَعْيُنٍ جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ

د انسان نفس په دے نه پوهیږي چه ما د ده د سترګو یخے ولو د
پاره کوم پټ نعمتونه پیدا کړي دي دا د ده د عملونو جزا ده.
دغه بد عملونه به د طوق او د زنځیرونو په شکل کښې ښکاریږي د
زقوم او د ګرمو اُبو په رنګ کښې به تکلیفونه ورکوي. د انسان ورز
سختي د جهنم تیاره جوړیږي او د خدائے قهر د جهنم شکل اختیاروي
د جهنم نه د خلاصي د پاره د پیغمبرانو شفاعت یا د خدائے عام
رحمت سبب جوړیږي د چا ذره چه د نبوت د فیض نه روښانه دے
هغه د ننني خلقو د ټوقو او مسخره نه شي متأثر کیدے چه
ن روځ په لویو مجلسو کښې ښکاره کیږي. موږ د خپل عمر
هس حصه د شریعت په لوستو اُوریدو پوهیدو کښې نه تیروو
او په دے نادانۍ کښې د جنت د نعمتونو او د دوزخ د عذاب
حقیقت په عقل کښې راولو. ځکه اخلاقي حالت چه ن د دین نه
د بے خبرۍ او د اسلام نه د بے پرواهۍ په وجه څومره
غورځیدلے دے. د هغے حال او مستقبل هم تاریک دے.
هر پوهیدونکي له پکار دي چه اول د ځان سره حساب اُوکړي
چه ز د ه قرآني تعلق، اسلامي محبت، په خدائي مینه د رسول
اتباع څومره ده او بیا د خپل اولاد، خپلوانو، کلي والو تابعدارو

متعلق فکر اُوکړی چه داخلق په څه کښې دوبحه شپه تیروی او د
دے ناپوهوپه ذمه کوم فرض دی خاص کر د پښتون قوم
عالمو له پکار دی چه د موجوده حالاتو نه خونه اُته کړی او د
دے د پاره خپل علم، وخت او عزت قربان کړی. سے نه چه د
دوی خاموشی د دوی د پاره باعث د لوئے سزا اوګرځی. زه دا
منم چه د لپښتون قوم عالم خاص اثر نه لری لیکن اثر لول او
او ثابتوه کیدل د عالم د پاره ضروری نه دی تبلیغ کول صرف
د علماؤ فرض دے نتائج په خدائے پاک پریښوده پکار دی
خدایه اُخوبز علم خوبز عزت او قلم د اسلام په خدمت کښې
صرف کړے امین.

## وحی او الهام

دا دواړه لفظونه په عربئ کښې یو معنی لری لیکن پشریعت
کښې الهام عام دے او وحی د پیغمبرانو سره خاص ده. وحی د
خدائے تعالیٰ او د رسول په مینځ کښې یو تار برقی ده چه د دے
په ذریعه پیغمبرانؑ د خدائے پاک سره همراز او هم کلام کیږی د
انسان او د خدائے تعالیٰ په مینځ کښې خاص دغه یوه ذریعه
ده. کښې نو د خالق او د مخلوق په مینځ کښې هیس مشاکلت او
مماثلت نشته.

ذریعه

شریعت یوازې د انسان د پاره نه دے راغلے بلکه په دنیا کښې د هر مخلوق د پاره جدا جدا شریعت په خاص خاص وحی سره جوړ کړے د انسان نه علاوه نور مخلوق داسې فرمان بردار دے چه هغوی د خپل شریعت نه خلاف نه کوی او که چا پکښې خلاف اوکړو نو په دنیا کښې نورا سزا مومی. معدنی کانی اشیاء دا شریعت لری. چه دا کانی اشیاء دے سخت یا نرم کوم یا څوک دی هغه په سره سپینه او قلبی وی که په دے شریعت عمل اونکړی نو دے نوم نه به محروم شی۔

ونو ته دا حکم دے چه دوی به خاوره د اوبو په ذریعه څښی او پیدے به سانګے پاڼے اوکلونه جوړوی او د خه خاصے مدے نه پس به میوې پیدا کوی دیته حکم دے چه هره ونه به خاص خاص قسم لګیږ دا ږی پاڼے جوړوی د بیرے پاڼے به د پیپل پیڅان نه وی او د آم نه به د مالټے میوه نه پیدا کیږی۔ په حیوانانو او مرغو باندے هم خپل خپل شریعتونه جاری دی او دوی پرعمل کوی۔ هم دیته خدائے پاک اشاره کوی چه

وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ

د خدائے رالیږلے شریعت هر هغه مخلوق منی کوم چه په اسمانونو او زمکو کښې موجود دی وَالشَّمْسُ تَجْرِیْ لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ۔ نور هغه په خپل مقام کښې باقاعده ګرځی او دا د غالب عالم خدائے

جوړه اندازه ده۔

خلاصه دا ده چې دا کوم شریعت چه ما او تاته ګران دے۔ او
مونږ ترڅټو دا یواځې څمونږ د پاره نه دے دا فقط دے خبره ده چه
څمونږ د شریعت ژبه بله ده او د نور مخلوق د شریعت ژبه بله ده
د مخلوق تسبیح او عبادت په بل رنګ دے او څمونږ په بل رنګ دے انسان
یو ترقی یافته مخلوق دے پس ځکه د ده شریعت د ګټو و نوا و ځناورو
نه اعلیٰ او مخصوص دے د انسان د ذره تعلق د خدائے پاک سره د
نور مخلوق نه زیات دے ځو انسان د جسم او روح نه جوړ دے او دا دواړه
جدا جدا صفتونه لری۔ په جسم کښې ظلمت دے او په روح کښې رڼا
او پاکی ده۔ د جسم خواهش دے چه قوتِ بهیمی زیات کړی او ځناور
ھسے جوړ شی او د روح خواهش دا دے چه قوت ملکی زیات کړی او
د ملائکو نه زیات شی۔ په دے کشمکش کښې د انسان ډیر قسمونه
جوړ شی۔ څوک ډیر بد دی۔ څوک لږ ناکاره څوک ډیر نیک او څوک
لږ صالح۔ په قرآن شریف کښې به تاسو او ګورئ چه څوک فاسقین
منافقین، ظالمین، مغضوبین، معتدین دی۔ او څوک صالحین، متقین،
صدیقین، شهداء او اولوالعزم انبیاء علیهم السلام دی۔ دا قسمونه
د جسمانی او روحانی قوتونو په زیاتی او کمی پیدا کیږی

د پیغمبرانو سره د وحی د راتلو مختلف طریقے وے په بعض احادیثو
کښې راځی چه جبرائیلؑ به د دحیه کلبی صحابیؓ په شکل کښې د حضرتؐ سره

راته کله به د یو اجنبی په شکل کښې مسافر هسې راغی په مجلس کښې
به کیناست او د حضرت نه به ئې تپوس نه اوکړه. یو کال ارهمغه
یو مسافر د حضرتؐ نه په عام مجلس کښې د ایمان او د اسلام تعریف
اُوپښته. حضرتؐ ورله جواب ورکړه او بیا لاړه حضرت عمرؓ وائی
چه دے لاړ نو حضرتؐ موږ ته اووے چه دا حضرت جبرائیلؑ وو
تاسو ته ئې د دے سوالونو په ذریعه د اسلام او ایمان معنی ښودله
په بخاری شریف کښې دی چه

اَحْيَانًا يَتَمَثَّلُ لِيَ الْمَلَكُ رَجُلًا فَيُكَلِّمُنِيْ فَاَعِيْ مَا يَقُوْلُ

کله به فرښته ما ته د یو سړی په شکل کښې راغله ما سره به ئې خبرې
اوکړے او ما به ئې هغه یاد کړے
کله به جبرائیلؑ په ملکوتی شکل کښې د حضرت صلے الله علیه وسلم
سره راغی. او کلام الهی یا احکام الهی به ئې کله سره د الفاظو او کله
بغیر د الفاظو نه ئې مطلب ئې په زړه کښې واچوو او کلام به ئې اوکړه او بیا د
حضرتؐ نه به چا او نه لیدل او نه به ئې د هغه آواز واوریدو. د
قرآن شریف اکثره وحی په دے رنګ کښې راغلې ده. د قرآن شریف
دا آیتونه د دے تائید کوی

قُلْ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيْلَ فَاِنَّهٗ نَزَّلَهٗ عَلٰى قَلْبِكَ بِاِذْنِ اللّٰهِ

که څوک د جبرائیلؑ دشمن وی نو وی دے ده خو دا قرآن شریف ستا
په زړه باندے د خدائے په حکم سره نازل کړے دے

يُلْقِي الرُّوحَ مِنْ أَمْرِهِ عَلَىٰ مَنْ يَشَاءُ

خدائے تعالیٰ جبرائیل چه چا سره لیکی نو دغه خو بنه ده" پاتے
شوه دا خبره چه جبرائیل د خدائے پاك نه قرآن شریف څنګ
واوریدو او حضرت ته څرنګ نده کړه نو دد ے متعلق ما دیر څله
تا سو ته ثابته کړه . چه د عالم ملکوت اوریدل ویل او لیدل څنګ
د اوریدو ویلو او لیدو په شان نه دی - ځو مونږ په انسانی حیثیت
باندے د ډیر کوششو نه ویلو ته دیر مقرر تقریرونه اوردو او په څه اشارو
باندے دغه په مطلب پوهیګو ته هغه ویناو نه کوو . اُس ته فکر
اوکړه چه که زه او ته د عام ګفتګو نه خلاف ګفتګو کولے شو . نو په
عالم ملکوت کښ هم ولے داغه کلام د خدائے تعالیٰ او د جبرائیل
په مینځ کښ نشي کیدے چه هغه د هغوی دوار و د شان مناسب
وی .

ما او تا ته چه لوے دوځ کښ کومے خبرے نا ممکنه
ښکاریدے هغه ممکن شوے د سلیمان علیه السلام په هوائی
جهاز باندے ته نه پوهیدے خو اس پرے ته پوهه شوے خه پوداوی
ته د ځان نه زیاتے خبرے نه کوے او باد بادشاهت ته خپل ځان
نه شو مو ے هغه علام الغیوب قادر مطلق بے انتہا طاقت لرونکے خدائے
چه څه فرمائي هغه صحیح فرمائی ځو نو د عقل د هغه په حکمت په حقیقت
نشته

انسان که کروړونو کلونه خپل عقل له ترقي ورکړي او د ځان د خیر او د
شر په باره کښې د نکارنګ ایجادونه او کړي نو بیا به هم د خدای د
قدرت ذره قدر معلوم نه کړي په انساني عقل د خدای تعالیٰ
ملکوتي خبرې معلومول داسې دي لکه یو زرګر خپله کمزوره تله دا
واخلي او دا اراده او کړي چه زه به دې تله کوه همالیه وزن کوم. اخر
د دې انجام به څه وي. ستاسو ته یقین دی چه دا زرګر به په دې
وهم کښې کامیاب شي یقیناً داسې هرګز نه شي کیدې نو عقل ضرور
په هغه معامله کښې به کار راوله چه هغه ته عقل رسي. تفکر به او
تعقل د خدای حکم دی خو په هر ځای کښې نه. خدای تعالیٰ
فرمائي.

عَسٰى اَنْ تَكْرَهُوْا شَيْئًا وَّهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَعَسٰى اَنْ تُحِبُّوْا
شَيْئًا وَّهُوَ شَرٌّ لَّكُمْ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ

کیدای شي چه ته په خپل عقل کښې یو شی بد ګڼړې او هغه د خدای
پاک په علم کښې ښه وي او کیدې شي چه ته یو شی په خپل عقل کښې ښه
ګڼړې او هغه د خدای پاک په علم کښې بد وي (ګوری) خدای
پوهیږي او تاسو نه پوهیږئ' اوس پرې تاسو فکر او کړي چه ستاسو
د عقل وزن څومره دې او تال په عقل څومره اعتبار پکار دې؟



## قرآن شریف څه رنګ جمع کړې شه

خو نبي ﷺ په خپل ژوند کښې د ټول قرآن شریف مجموعه نه وه جوړه
کړې بلکه د قرآن شریف اصلي دارومدار په یادداشت وو او په
هغه زمانه کښې د حافظانو یادداشت د خط د کلي په وجه ډېره ډېر
وو چه په تشو یو ځل اورېدو به یې ډېر ډېر شعرونه یادول د قرآن
شریف د هغې زمانې د مسلمانانو د اسې محبت وو چه جان مال عزت
او ملکونه ئې د هغه د پاره پرېښودي وو - هغوی به د تګو غونډې
دېته ناست وو چه کله به اٰیتونه نازلیږي چه مونږ یې یاد کړو او
په هغې عمل اوکړو چه په وحي نازلېدو کښې به کله کله ورځې تېرې شوې
نو دوی به خفه د کنیږو ناست وو چه ښه اُشه څه حکمونه رانغله
په اغه وخت کښې لیکونکي کم وو - خو بیا هم زید بن ثابت رض او عبدالله
بن مسعود رض موجود وو - دوی به قرآن شریف د اُخانو په او دوکو او د
کجورو په پڼو هسې د کتابت په ډو یاد و په خاطر لیکه - دا د اسې
وخت وو چه حضرت او صحابه رض لیکلو ته اُز کار هم نه وو - د دنیاکوم
مصیبت وو چه دوی په کښې کیر نه وو - د حافظانو ډېر والې د دسونه
دوره نه په مونځونو کښې منزلونه لوستل دا داسې چونډې ماحول
او حالات وو چه په دې کښې د قرآن شریف جمع کول څا ضروري نه کنړل
ځوني حافظان چه اکثریت نه یو صبیکی د هغه په مخکښې د قرآن شریف
د غلط احتمال نشته نو د اهلبیان فدایانو حافظانو په مخکښې به قرآن

د زور زیر د تبلیغ او خیال هم د چا په زړه کښې نه راتلو په
یمامه کښې مسیلمه کذاب د نبوت دعوی اوکړه او د هغه سره د
صحابه کرامو جنګ اُشه په دے کښې اویا حافظان شهیدان شو.
دغسے دوه سلورو نورو جنګونو کښې حافظان د قران شهیدان شو
په دیوچه حضرت عمر رض دا خو خه کړه او صحابو پرو وسره اتفاق اکړو
چه قران شریف په یو ه مجموعه کښې راجمع شي د دے د پاره د کاتبانو
او حافظانو جرګه جوړه شوه زید بن ثابت رض کاتب الوحی د دے جرګی
مشر وو په انتهائی تحقیق او احتیاط سره یوه مجموعه اُلیکلے شوه
هم دغه مجموعه ده کومه چه نن په دنیاکښې موجوده ده بیا دغه
نسخه ابوبکر صدیق رض له ورکړے شوه چه د هغه خلافت خلاص
شو نو دا حضرت عمر رض له ورکړے شوه بیا دغه نسخه حضرت
حفصه رض ام المؤمنین رض له ورکړے شوه. د حضرت عثمان
په خلافت کښې چه مسلمانان ډیر زیات شو بیا صحابهٔ جرګه
اُکړه او فیصله اُشوه چه د دے نسخ نه ډیرے نسخ لیکل پکار دی
چنانچه دے حضراتو چه زید بن ثابت، عبدالله بن زبیر
سعید بن عاص، عبد الله بن حارث وو. د حضرت حفصه رض د
نسخ نه یے شپږ یا اوه نسخ اُلیکلے او هغه یے عراق. شام. مصر او
نورو اسلامی ملکونو ته اُلیږلے او هغه اصل نسخه یے بیا حضرت
حفصه رض سره کیښوده. قران شریف یو داسے کتاب دے

چه خاوند نه څوپ نکیده په باندې وکښې مسلمانانو ته یاد دے او نورمذهبي کتابونه خاوند نه څوپ نکیده ئې نوم د پاره په کښې حافظ نشته. ځکه هرچا څوخ ده چه چاځه پکښې الیکل. پاتې شه قرآن شریف دیارلس نیم سوه کاله څه د پاسه او شوځه د هغه په یو ټکي کښې فرق رانغے او نه به راشي.

## بوه قصه

یو مشر وائي چه تر دے انګریزانو پادریانو په اول اول کښې داه فیصله اوکړه چه په هندوستان کښې چهاپه خانې نشته او قرآنونه محرف قلمي دي راځئ چه دا قلمي قرآنونه ګران ګران د مسلمانانو نه واخلو. تر دے چه بیا په هندوستان کښې موندې نشي نو بیا به مونږ د خپل طبیعت موافق قرآن شریف په خپل ملك کښې چهاپ کړواو په هندوستان کښې به ئې خرس کړو په دے طریقه به په قرآن شریف کښې اختلاف پیدا شي او څوک عیسائي مذهب به قبلوي. یو مشر مسلمان ته دا معلومه شوه هغه یو پادري ته اووے چه دا ستاسو خیال غلط دے که چیرے قول قرآنونه تاسو په سمندر کښې لاهو کړي اخدا ئے د دنګي) نوهم په قرآن شریف څه اثر نه شي کیدے ځکه قرآن شریف د مسلمانانو په زړونو کښې لیك دے هغه ځان مه ستړے کوئ.

له یعنی د تورات، انجیل، زبور هیڅوك حافظ نشته او ځکه تحریف پکښې اسان دے (منه)

خلاصه دا هم چه د قرآن شریف هره حصه قرآن شریف ده چه
فصاحت کې بازیاتې ده جوړه یې نه شته او نه به اوشي - کوم چه قرآن
شریعه وئیلی دي په هغې ایمان او په هغې عمل کول په هر مسلمان بالغ
عاقل سړي او ښځې فرض دي. کوم چه داسې انکار ، لکه چه نن
روځ د بدقسمتۍ نه مونږ خپل ځان خپل اولاد د ښتانه وینو
چه نه قرآن شریف کوي نه پرې پوهیږي او نه پرې عمل ته تیار دي - نو
د داسې مسلمانانو دنیوي او اخروي بوند خرابیږي.

اې خدایه ! ته قادر توانا یې ته د مخلوقو زړو نه گرځونکی یې
ځمونږ په زړه کښې د دې خوږ کلام محبت پیدا کړې مونږ پرې پوه
کړې او مونږ پرې عمل کولو کړې آمین

## د حضرت رسول صلی الله علیه وسلم

## مختصر حالات

د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د پیغمبرۍ خوشخبري تولو مخکینو پیغمبرانو
ورکړي وه ، تورات ، کتاب دانیال ، زبور ، انجیل او مکاشفات یوحنا
کښې چرته مجمل ذکر دے او چرته د هغوی نوم احمد یا محمد ښکاره
دے د دې ترجمه او تفسیر پاندیانو په فارقلیطا وکیل محمدیا او روح
سره کړے دے بلکه د هندوانو په کتابو کښې لکه ویدا او د پادشیانو

په دمساتیو وکښی هم د حضرت د دین د داتلو ذکر شته په دے باره کښی څو څو عالمانو دیر کتابونه لیکلی دی.

څو وخت چه پیدا شه نو د فارس اور خانے سړے شوے د کسری د بادشاه د محل منارے اوغزیدے په عرب کښی قحط زړک شه د حضرت د مور بی بی نوم آمنه وو. هغه عجیبه عجیبه واقعات خلاف عادت اولیده. د حضرت د نیک چلند او د وش خلقه شهرت په ټول عرب کښی کیده. یو وخت د پیغمبری نه مخکښی د دوئ په ترینه کښی ادیو ه اوږدے قیصے لیکلے وے د حضرت په څ مبارک باندے یادانو نه غوځیدے شو. حضرت به په یتیما نو غریبو خلقو او کنه ورانے نه صرف مهربانی کوله بلکه د د وئ خدمت سودا او دارو درمل به ئے ورله کول.

حضرت لا پیدا نه وو چه والد صاحب عبد الله رض وفات شه او تقریباً د شپږ و کالو وو چه مور بی بی آمنه هم وفات شوه د حضرت حفاظت بیا د هغوی نیکه عبد المطلب کوه چه د حضرت عمر د پاسه د اتو کالو شه نو عبد المطلب هم وفات شه. او ذمه واری په ابو طالب چه د حضرت تره وو راغله

کوم وخت چه د حضرت د پیغمبری روځ نزدے شوے نو حضرت اخلوت خلواله ناسته خو بنه کړه او په غار حرا کښی چه د کعبے شریف نه تقریباً دوه درے میله لرے وے کیناست. د دے

غاړا او پښه د والي څلورګڼه او بېلتونواله ئې پخه پاوه وي - ام المؤمنين بي بي خديجه رضي الله عنها به د يو څو روځو خوراك او او به حضرت سره يوړے او کله به حضرتؐ هم کور ته راغې

په دے طريقه چه د حضرتؐ نه جسماني تاريکئ لرے شوے او ورا رنړ اشه نو د پاك روحاني دنيانه د حضرتؐ په زړه رنړا ګانې راتلل شروع شوے. کتو او ونو به ورته سلامونه کول د هر طرف نه به د السلام عليك يا رسول الله اوازونه وو. حضرتؐ پخپله دې حيران وو. څوك به سنکاريده نه او سلامونه به کيدل شو.

حضرتؐ يوه روځ د حراء په غر ولاړ ووچه يو سړے را ښکاره شه او دا سے ئې اووے چه

البشر يا محمدُ انا جبرائيلُ وانت رسولُ الله "

زيرے دے وي بنا اے محمد (صلى الله عليه وسلم) زه جبرائيل يم او ته د الله رسول ئې" او د ريخم کپړا يے چه ديره ښائسته وه د حضرتؐ په لاس مبارك کيښوده - او دا سے يې اووے چه دا ولوله حضرت اووے چه زه لوستونکے نه يم زه امي يم بيا جبرائيلؑ حضرت د سينے سره ونګوا او دا سے يې ورته اووے چه ضرور اُس دا به حضرت بيا هم هغه عذر اوکړه عرض دا چه درے ځله حضرت د جبرائيل د سينے وصال حاصل کړه او بيا په لوستو

تا در شو. نو جبرائیل وے چه وایه

اِقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ ۚ خَلَقَ الْإِنسَانَ مِنْ عَلَقٍ ۚ اِقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ عَلَّمَ الْإِنسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ -

بیا دوئ دواړه د غره نه ښکته راکوځ شو او هلته جبرائیل یوه خپه او وهله چه په هغ کښې چینه را ښکاره شوه اول د هغونې د پاره حضرت جبرائیل اودس اوکړو او بیائې حضرت رسول خدا صلی الله علیه وسلم ته اووے چه تاسو هم اودس اوکړه او دوه رکعت مونځ اوکړه -

خلاصه دا ده چه اودس او مونځ کول حضرت ته په غار کښې اُستوګن شو او سوره "اِقْرَأْ" نازل شوکو یا د غه روځ د حضرت مکمل روحانی تعلقات د عالم روحانیات سره پیدا شو څکه خدائے پاک فرمائی چه وَوَجَدَكَ ضَالًّا فَهَدَىٰ تا ته د دے روحانی خبرو حال معلوم وو نو مونږ در ته په خپل رحم لار او ښودے. او بل ځائے داسے وائی چه مَا كُنتَ تَدْرِي مَا الْكِتَابُ وَلَا الْإِيمَانُ اے نبی تا ته نه وو پته چه کتاب څه دے او ایمان څه دے حضرت د دے واقعات نه پس کور ته راغے حضرت خدیجه رض نه ئې دا حالات او وے هغه حضرت ورقه بن نوفل سخه یو نه دے د آسمانی کتابونو لوئې عالم وو هغه چه دا قصه واوریده نو داسے یې اووے چه دا تا سخه راغے جبرائیل

راغلے

وحی

ووایه ته د خدائے اخری نبی ئے د دوے نه پس شپږ میاشتې وحی بنده
وه په دے د حضرتؐ طبیعت مبارک ډیر خفه او دلګیر وو. بیا
مدثر، مزمل، نون، فاتحه او تبت سورتونه نازل شو. حضرتؐ
د پیغمبرئ نه پس دیارلس کاله په مکه کښې وو. په ځوانانو کښې اول
اول ابوبکرؓ او په هلکانو کښې حضرت علیؓ او په ښځو کښې حضرت
خدیجهؓ ایمان راوړے وو. د خلقو په مسلمانیدو د مکے کافرانو
کښې ډیره غصه او کینه پیدا شوه په دې وجه هغوئ مسلمانانو ته
ډیر تکلیفونه ورکول شروع کړه. اخرکار د مسلمانانو یو ټولګے د
د جعفر طیار سره د حبشے ملک ته لاره هجرت اوکړه. د هغه ځائے
بادشاه نجاشی وو چه عیسائی وو او د تورات، انجیل ښه عالم وو
هغه ته معلومه وه چه اخری نبی به راځی. هغه د دے مهاجرینو نه تپوس
اوکړه. قرآن ئې واوریده او سره د خپلو وزیرانو مسلمان شه او د
دے مهاجرینو ئې ډیره ډیره مدد اوکړه یو څو ورځې پس حضرت
رسول خداؐ هم سره د ابوبکرؓ نه مدینے ته روان شه. د مدینے
خلقو په حضرتؐ د اول نه ایمان راوړے وو هغوئ د خوشالئ چغې وهلې
او د حضرتؐ ته راغلی وو. څلور پشت ورځې حضرت په قبا کښې وو دا
ځائے د مدینے نه درے میله لرے دے بیا مدینے منورے ته
راغله په مدینه کښې باقي قرآن شریف نازل شه. اول بدر جنګ
د مکے د کافرانو سره اوشه. بیا د اُحد وغیره او بیا مکه مکرمه
فتح شوه. خلاصه دا ده چه یمن، نجد، عراق او بحرین ټول د اسلام

تا بعد ازشو په لسم کال د هجرۍ کښې حضرت په دوولسم د ربیع خور د کل په روځ د دے ظاهری دنیا نه تشریف یوړه د حضرت نه پس صحابه کرامو د روم، شام، مصر، ایران وغیره ملکونه فتح کړه او په څه ډیر وخت کښې د اسلام رڼا په خوریدو شوه او پد لګیده بیا د تابعینو په زمانه کښې د هندوستان په ملک کښې په سنده کښې اسلامی تبلیغ راورسید۔

د حضرت نه پس ابوبکر رض بیا عمر رض بیا عثمان رض بیا علی رض بیا حسن رض په دیرش کاله کښې د ننه وار په وار خلیفه شان وو۔ د دوی نه پس خلافت په سلطنت بدل شه او معاویه رض قابض شه بیا معاویه زوئے یزید بیا د هغه زوئے معاویه بیا مروان او دغسے دیره موده بادشاهی د دوی په اولاد کښې وه د د دینه پس سلطنت عباسی خاندان ته راغے او سل ورسوه کاله په عباسیانو کښې سلطنت وو هارون الرشید او مامون الرشید بادشاهان په دے خاندان کښې وو بیا د مغلو قوم چه په غه وخت کښې کافران وو په بغداد حمله اور شو۔ نو د مسلمانانو سلطنت لاړه خو بیا د مصر بادشاهانو مغل او بنکه او د دے نه پس مغل مسلمانان شو۔

په مدینه منوره کښې سورهٔ بقره، ال عمران، مائده، توبه نازل شوی دی۔ د ټولو نه روستو سوره براءة یا سوره نصر نازل شه۔ قرآن شریف په درویشت کاله کښې لږ لږ نازل شوے دے

چه خلق دا په تلاره قلاره یاد کړی او په هغه عمل اوکړی کاحضرت
د پیغمبر ځ نه مخکښې یو کله ارشام ته د قافلے سره سوداګری د پاره تلے وو
او راهبانو په نخو نخا نو پیژندلے وو او په دے وجه هغوی تلارے
نه واپس راغلی وو.

## د قرآن شریف د مضامینو مختصر بیان

د پیغمبرانو علیهم السلام په دنیا کښې د رالیګلو مطلب دا وی چه د
خلقو نه فساد لرے کړی او کوم کارونه چه د انسانی فطرت خلاف وی
هغه ګرک کړی. د پیغمبرانو د صداقت یوه نمونه دا وی. ټول پیغمبران
یوشان تعلیم کښې یو رنګ وی که فرق دے نو صرف فروعی او لو لوږ دے
خو بنیاد د بنی نیکه ابراهیم د دین پاک شریعت خاوندا وو. عربو د دے
اصلی رنګ مسخ کړو او د خدائے پاک مخے یو د دنیاوی بادشاه جوړ کړو
ده له ئے وزیران پیدا کړه. څوک رزق ورکونکی شو. څوک باران ورونکی
کړے شو ندوونه نیازونه او شکرانے ورله ورکول شروع کړے شو
او با قاعده د دویم درجے خدایان شو

په عربو کښې هر دهلی د بت پرستی او لئے ګته کیږد و نکیب مه
دا بت پرستی خو نن د بنی نه دے سوه کاله مخکښې شروع شوے وه
او څو نګ چه د هغه دا نو په درمسالو کښې د ګرشن بت پروت وی
د هغے به په عربو کښې هر یو قبیلے ځان ځان له بت جوړ کړے وو. د

بنی کلب و د بت نوم وُدّ وو د هذیل د بت نوم سُواع وو د مذحج د بت
نوم یغوث وو د همدان یعوق او د حمیر نسرا وو. دا پنځه واړه بتان
د نوح په زمانه کښې هم وو. قریشو خاص په ابراهیمی جماعت کښې چه
کعبه شریفه وه د حضرت ابراهیم او د حضرت اسمعیل د نوم بتان
ایښي وو. د دې نه علاوه درې سوه شپیته بتان هم وو. د کعبې شریفې د
ټولو نه د لوی بت نوم هُبل وو

## د عربو مذهبي تقسیم

(۱) **معطله** — معطله عام طور سره بت پرست وو چه د دغې
رد ځائے ځایئ قران شریف کوي.

انکم وما تعبدون من دون الله حصب جهنم

تاسو او ستاسو بتان به د دوزخ لرګي یئ. د دوی دا هم عقیده وه
چه پس د مرګه بیا ژوندی کیدل نشته او دا ژوند د طبیعت او د زمانې
په وجه دے د خلقو ته دهر په وائي کوم چه خلقو اکثریت به یو ډلي
ملګو ټوکښې دے او د دوی شاګردان ځوانان په وطن کښې هم را زرغون
شوې دي په سیاسي ډلو کښې د دوی کافي تعداد شته د دوی دا
هم عقیده وه چه مال دولت شان شوکت او کته په هره
طریقه چه وي. په وعده باندې تمینګین له دي پکار چه کم طرف
ته هوا زي هغه خواته تلل پکار دي د دوی ذکر خدای پاک داسې
کوي وقالوا ما هي الا حياتنا الدنيا نموت ونحيا وما يهلكنا الا الدهر

نورهِس لسُته صَرف هم دغه دنیاده اوکه دے دا جوند دے او
خوبز مرګ اوژوند دَزمانے په لاس کښی دے دَبتانو عبادت هُ دے
دَپاره کوی چه دوئ به سفارش کوی" مَانَعۡبُدُهُمۡ اِلَّالِيُقَرِّبُونَا اِلَى
اللّٰهِ زُلۡفٰى دَدے جواب خدائے داسے کوی چه مَنۡ ذَاالَّذِىۡ يَشۡفَعُ عِنۡدَهٗ
اِلَّا بِاِذۡنِهٖ څوك به بے داجازت دَخدائے نه شفاعت اُکړی دوئ به
وے چه دارسول څوګوز لپشان خوراك سکل کوی دے څرنګ پیغمبر
دے رسول خو فرشته پکار ده حکم خدائے تعالیٰ وائی وَلَوۡ جَعَلۡنٰهُ
مَلَكًا لَّجَعَلۡنٰهُ رَجُلًا که موږ ملائکه هم رسول رالیږلے وے نو هغه
به هم د انسانانو دَرسول والی په وجه سرے وو اوددا خبره یوازے
په حضرت محمد کښی نه ده بلکه وَمَآ اَرۡسَلۡنَا مِنَ الۡمُرۡسَلِيۡنَ اِلَّآ اِنَّهُمۡ
لَيَاۡكُلُوۡنَ الطَّعَامَ وَيَمۡشُوۡنَ فِى الۡاَسۡوَاقِ مخکښی ټول رسولان خوراك کړی وو
او په بازارو نو کښی ګرځیدلی وو نالونه ښیول دعمرو په باره کښی
عجیبه وهمونه ښکاره کول فرشتو ته دَخدائے پاك لونړه وئیل کرپری یا خو
ئه اضداد غوختل. کاهنانو سحره دَغیبو خبرو معلومو لودَ پاره تلل. دستورو
دائو په باره کښی عقیدے ساتل. چه باران هُط بالعدار اوقعه کیدل
دَدے ستورو په وجه دی. سفرونه خوبیداو فروخت به ځ دستورو
په ښتو په پو توکول. دا قسم خیالات خوبز دا کسڅو نانګهو زنانو هم
دی دا عقیدے به دوئ ته معلومه شی چه لدینه قرآن تعریف منعکری
(۲) محصله ۱ - داخلق یو خدائے منونکی وو. دَنیا متظهر وه - خو

ډېر لږ وو په دے   د له کښې عمر د رب په نغيل وو چه ترکيب شريف مټ
بهٔ ئے تکيه نکولے وه د توحيد وعظ به ئے کا وو خلق به ئے د شيانو
نه منع کا وو د حشر نشر او د حساب کتاب قائل وو. بل قيس بن ساعدة
وو هغه ډېر لوئے شاعر وو. بل عامر عدواني وو دے حکيم او لوئے
خطيب وو دے وائي چه

چه ما داسے شے نه دے ليدلے چه هغه خپل ځان پخپله
پيدا کړے وي او داسے کوم شے چه را تلونکے دے هغه شے
تلونکے هم دے"

قرآن شريف د سلو ورونو په لوړ د اصلاح د پاره ځائے په ځائے
ارشادات کړي دي. دوئ د فطرت سليمه نه خلاف وو اول عرب معطله
چه د هغوئ تفصيل بيان شو دويم يهود وي په دوي کښې دوه وه ناکار
والے وو چه د بني اسرائيلو پيغمبرانو هم د دوي اصلاح او نکړے شوه
روزانه به يهود يانو معجزے ليدے او نافرماني به ئے کوله په آخر
کښې ئے نه حضرت عيسیٰ او حضرت يحيیٰ او وے چه زړکوي سم شئ
کيني د آسماني بادشاهئ زمانه زر را تلونکے ده او داسے يو نبي عربي
را تلونکے دے چه د هغه په لاس کښې به زور د شريعت وي سرکشانو
له به سزا ورکوي" د دے نه د دوئ مطلب حضور حضرت صلے الله
عليه وسلم وو. يهود يانو ته په تورات کښې د محبت په وجه ځوئے ويلے
شوے دے. د دے نه يهود يانو واقف ځوئے والے وا غشتۀ ادعان

لوئ لوئ الزامونه لګولی وو. قرآن شریف د دغه والی مطلب هم د
پیغمبرانو معصومیت بیان کړه په جادو او منترو کښې ډیر ګرفتار وو
تر دې حده چه حضرت سلیمانؑ طرف ته ئې هم دې نسبت کاوو. په
حضرت مریم هم ګوری ناجائزه بدګمانی کولې عیسیٰؑ دوی مسیح دجال
وے یهودیانو د حضرت رسول خدا صلی الله علیه وسلم سره د
ډیرې دشمنئ وجه داوه چه په قرآن شریف کښې د عیسیٰ معصومیت د مریمؑ
پاکدامنی بیان شوی ده بیا هم په یهودیانو کښې نیکان عالمان عبد الله
بن سلام او کعب احبار غوندې مسلمانان شو او په جنګونو احزاب کښې
بنی قریظه بنی نضیر او د خیبر یهودیانو ته اتنی اسلامی شریعت خپل
اقتدار ښودو. په سورهٔ بقره او په نورو اکثرو سورتونو کښې په تاسو
د یهودیانو اکثر حالات او ګورئ. د تفسیر انتظار کوئ. انشاء الله ډیر
زر به ستاسو ننداره ته شی.

دریم نصاری دی د یهودیانو نه زیات وو. ددوی سخت په واقعاتو
کښې د عیسیٰ علیه السلام هغه انجیل نه وو اګرچه حواریانو د عیسیٰ د دین په باره
کښې ډیر کوشش کړے وو خو بیا د عیسوی په دریمه صدی کښې په سوونو
دروغجن مسیحیان پیدا شو چه هغو دعویٰ اکره چه روح القدس جبرائیل
د دوئ سخه راځی او دوئ ته الهام کیږی. دغه ډیر دروغجن عقاید او
وهمونه حضرت عیسیٰ ته او د هغه حواریانو ته منسوب کړه. داسلور
واړه انجیلونه چه نن ورځ د عیسایانو سره دی او پادریان پرې ډیر نازیږي

وا دے زمانے پورے دی دَ دے خدا یانو عقیدہ ۔ دَ کفارے مسئله
دَ عیسیٰ دَ خدائی والی وهم دَ دے زمانے دَ درو عجبنو مسیحیانو ایجاد دے
دوی به وے چه نعوذ بالله خدائے پاک دَ عیسیٰ په رنګ کښی دَ مریمؑ په
ګیډه کښی داغلی او په حمل کښی پاتے شه او بیا په انسانی جامه کښی
دنیا ته راغی او دَ بنی آدمو دَ ګناهو دَ کفاره شه ۔ خدائے پاک له دَ
بنی آدمو دَ ګناهو دَ معاف کولو بله طریقه نه وه ځکه یے په ځان
پهانسی کړه او بیا ورا تلو وعده یے اوکړه ۔ دَ دے قولو خبرو تردید دَ
په تاسو په قرآن شریف کښی اوګوری دوی به وے قادم نه را واخله
تر ټولو پیغمبران ګناهګار دی په دے وجه خدائے پاک دَ دوی په خاطر دے
دوزخ په جهنم ګښی وو ۔ پولوس حواری وائی چه په شریعت عمل کول حرام
دی ۔ دَ شوائو سکلو او دَ ګناه کولو اجازت ورکوی او دغه وجه ده چه
عیسایان خه سپکاره به کارئ کوی ۔ چنیل دین کوچ ۔ انجیل ۔ صداقت
او ایماندار پورے خاندی او دغے دَ عیسایانو په کالجونو دَ یورپ په
ملکونو دَ فیر نګیانو په صحبتونو په جرګو او کونسلونو کښی دغه نقشه
ځوخوځ په هندوستانی خلق انی مسلمانانو کښی سپکاریکی ځکه خو دا تجربه ده
چه فیرنګیان به لاده ځی په مذهب پورے نوځے نه کوی لکه چه مونږه
تقلیان مسلمانان په ګوره شراب خوری او زناکه دَ یورپ په بازارونو کښی
کیږی نو خوئی په ملک کښی هم دغه په وړه زیاتیګی ۔ مونږ په دے عجبنو
او داغم شه به ته دے چه فیرنګیانو دا له ملک وا عشته غرق شو تباه شو

خوزه داوايم چه فيز نكيا نو ورسره درسره خوښ نه مذهب هيڅ ايمان اخلاق
صله رحمی د خدائے عبادت د رسول محبت هم واعشته. د دولت "كرنت" د
پاره نه راتخ پيش كيږي او هغه ته قرباني ويلې شي ليكن د مذهب د
پاره نه ماشه ادكړه او نه تا. د بوه لښتي كيدي په غم عمجن يو. د دنيا دلو
عمر واسره خيال دے د دے د عمه وجه كك شو په دے عجن خلق ديرنيكان او
درويشان كڼلے شي ليكن د مذهب اسلام په اصولو چه كوم خزان دے او
د رسول په ارشاداتو پورې چه كوم توقع دی د دے د پاره جبه نشته تلو
نشته قرباني نشته عجن نشته خيروا دنيا د لو ټكوهسے كړي. شايد چه دا
دك لو ځكے تش شي او تش دك شي دا قانون قدرت دے

څلورم توكے د منافقانو دے. منافقان دوه قسمه وو اول چه په ژبه يي
كلمه ويله خو په زړه كښې منكر وو د دوئ په باره كښې خدائے پاك وائي چه
إِنَّ الْمُنَافِقِينَ فِي الدَّرْكِ الْأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ بيشكه منافقان به د دوزخ
په سبكه درجه كښې وي. دويم قسم هغه وو چه هغوی د قوم د مسلمانيدو
په وجه د كمزورئ نه مسلمانان شوے وو كه قوم به ئے مسلمانان وو نو دوئ
بزدلان به هم مسلمانان وو. كنه نو نه به وو. بعض د خپلو خواهشات نفسانی
په وجه د اسلام پابند و نه تيار نه وو. بعض د خپلو كردارو او نواو
حسد ونو په وجه په عبادت كښې څه ذوق والے مونده كي نه وو. وَإِذَا
قَامُوا إِلَى الصَّلَاةِ قَامُوا كُسَالَىٰ چه ودې نمانځه ته او دريږي نو نا راست نا راست
الاروی به لو په خبره داده چه د حضرت صلے الله عليه وسلم كرا تلو نه

مخکښې د مدینې خلقو عبد الله بن ابي بن سلول خپل بادشاه جوړولو خو
چه حضرت راغی نو د هغه د طرف نه خلق اسلام طرف ته راغی دا خبره
عبد الله او د هغه دوستانو ته ډیره ناګواره وه په ظاهرکښې خو ده مخالفت
نه شو کولے خو په پټه به ئې په حضرت او د هغه په صحابه ؤ باندے
اعتراضونه کول. لس شل طیار خواره به د ده ملګري وو د دوئ ذکر په
سوره منافقون کښې خصوصًا او په نورو مقامانو کښې عمومًا راغلے. په حضرت
عائشې رضی الله عنها چه تور الزام لګیدلے وو هغه هم د دوئ سازش وو
په سوره نور کښې دا ذکر شته. دا خلق به د جهاد د ورنه په حیلو بهانو
باندے پټیدل او نور خلق به ئې هم منع کول البته د غنیمت په موقعه
به دوئ د اسلام دعوي کوله. دوئ به کافرانو ته د مسلمانانو حالات د
جهاد خبرونه پټ پټ رسول خو قرآن شریف د خلقو په زړونو کښې داسے
ځائے اوکړه چه بغیر د دوو ګلورو منافقانو نه نور ټول منافقان مسلمانان
شو. د دوئ نه علاوه د نورو ټولو ګمراهانو ذکر په قرآن شریف کښې ځکه
عرض کړے شویدے چه خلق د دے لارو نه واوړي او د اسلام صراط
مستقیم اختیار کړي. د مجوسیانو اتش پرستو نور پرستو چه یزدان د
د خیر خدای او اهرمن د شر خدائے منی. هم تردید په قرآن کښې شته
خلاصه دا ده چه قرآن شریف او حضرت محمد هرکله چه اخري
کتاب او اخري نبي وو نو دوئ په داسے زمانه کښې راغله چه د ګمراهي هر
قول اقسام په دنیا کښې موجود وو او د هغوئ ډیر په عام فهم طریقه
سره تردید او اصلاح قرآن شریف اوکړه وه او داسے مکمل تعلیم شه چه
ترقیامته د بل کتاب او نبي ضرورت پاتے نه شه ننځئ او د را تلونکے

نوے کړاسئ به د حضرت د زمانے د بد دینو شانو نه وی

## ځما د زړه بے آرامی

اے کامله مکمله دینه! دا سمه ده چه ته د ډیرو بے شماره خوبونو ډک
یې خو راغلے ما خو ندے ناقدرشناس سخه یې چه آرام طلب او په پلیت
ماحول کښې پیدا مسلمان دے. ته د ډیر عزت میلمه یې خو زه کور بستا
په قدر نه پوهیږم ته ځما مخلص دوست ئے خو دښمنانو راته دښمن کړے
یې ته ځانته په زړه کښې دنګیر یې ځما په باره کښې د ډیر شکایتونه لرے معلومه نه ده
چه ته به د خدائے سره ځما په باره کښې څه څه وائے پتاکښې اغښته خو
ځما کښې د قبولیت ماده نشته. ته ما زده کړے خو ما در باندے عمل اونکړو
ته څوتوبه تا کښې پروت یې خو زه د کیږے په غم غمجن یم ستا عالمان
خوار زار دی ان د بل چا در دوره ده هغوئ مذهب د ځان د پاره زهر
کړلی بو طرف ته ځما کښې قابلیت روحانیت او فدائیت نشته او بل
طرف ته ځما په لاره کښې لوئے لوئے عزونه دی زه نه پوهیږم چه زه ستا
څرنګه قدر اوکړم؟ زه ستا څه خدمت اوکړم؟ زه پتا څرنګه قربان
شم؟ خدائے ته معلومه ده چه ځما په زړه کښې که قابل تعریف محبت
نشته نو نه به یې خو بالکل خالی هم نه دے. ځما په زړه کښې دا لګن سره
زیات کړه ځما نه د دنیا حرص لرے کړه ځما په ژبه او قلم کښې دا سے اثر
پیدا کړه چه اول ځنیله پتا باندے عاشق شم او بیا د دله نور عاشقان

پیغمبر اکرم خدای ته دا خو تا ته گوا نه نه ده الله مجیب الدعوات دی

# د قرآن شریف علومونه

په قرآن شریف کښي بې شماره علومونه دي چه هغه ته د دین او د موضوع ضرورت دے او د رسالت فرض هم بې له دینه نه پوره کیږي پنځه علومونه په قرآن شریف کښي ډیر ډیر ذکر دي. اوّل علم المخاصمه دے یعني د کمراهانو د عقائدو تردید چه د هغه قدر دے ذکر په تیر شوي فصل د قرآن شریف مضامینو کښي او شه. دوّیم تذکیر بالاء الله یعني د اسمانونو او د زمکے او د نورو مخلوقاتو د پیدایش بیان د شپے او د روځے تله راتله. د اسمان نه باران وریدل د زمکے نه شنکے راتکیدل د بادونو او لتل د نور او د سپوږمۍ رفتار د هغے د کور انتظام کول په ښادونو کښي د او سیدو طریقے. د اخلاقو اصلاح د خدائے ذات او صفات د عالم فنا وغیره. دا په داسے عجیبه ساده طریقه سره ثابت شوي دي چه اوښیاران ورته حیرانتیا په ے خبرو د خاره نو عالمان او د باندو ناپوهان پوهیږي د خدائے د ذات او د صفاتو په باره کښي اګر که لفظونه سمیع او بصیر د دنیا د جب استعمال شوي دي لیکن د خدائے لیدل او اوریدل خوند یشان سترګو او غوږونو ته محتاج نه دي ځکه خدائے پاک وائي چه لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ او داسے وائي چه أَفَمَنْ يَخْلُقُ كَمَنْ لَا يَخْلُقُ. آیا

مخلوق انسان او غیر مخلوق خدائے یوشان کیدے شي صفا خبره ده چه
نشي کیدے. دریم علم التذکیر بایام الله دے یعني هغه واقعات او
حادثے بیانول چه په هغے کښې د نیکانو د نیکئ او د بدانو د بدئ ذکروي
په نیکانو چه کوم احسان شوے دے هغه او په بدانو چه کوم سزا راغلیده
هغه بیانول. هم دغه وجه ده چه په قران شریف کښې قصے مکرره دومره
ذکروي چه د کومے نه مطلب نصیحت اغستل شي د تورات انجیل کتاب التاریخ
او کتاب السلاطین پشان روغ جوړ تاریخ په قران شریف کښې نشته په
قران کښې هغه قصے بیان شویږي کومے چه خلقو ته یادوے او خلق تري واقف
وو په عذاب کښې گرفتار شوي قومونه او خاروته ورته معلوم وو. لکه
عاد. ثمود او نوح یا لکه حضرت ابراهیم. د بني اسرائیلو پیغمبران ذي
القرنین وغیره یا لکه د حضرت ادم قصه چه پیدا شه. ملائکو ورته
سجده اوکړه شیطان تي انکار اوکړه. د نوح د هوڅ. د ابراهیم د لوط
د شعیب د خپل قوم سره خبرے وعظ او نصیحت او د قوم جواب خدائے د دے
سرکشانو له عذاب ورکړه او پیغمبران سره د تابعدارو بچ کړه. د موسیٰ
او د فرعون او د بني اسرائیلو په مینځ کښې بحث او د دوی نافرماني په سلو
منزلو نو کښې داخل واقعات د داؤد د سلیمان د خلافت قصه د هغه کرامتونه
د ایوب او د یونس د مصیبت واقعات ذکر یا د دعا قبولیت. د عیسیٰ د
پیدائش معجزانه قصه د حضرت ادریس اسمان ته ختل د حضرت ابراهیم
د نمرود سره بحث د مرغوټو ندی کیدل خپل ځوئے اسمعیل قربانی کول

د حضرت یوسف قصه د حضرت موسیٰ پیدائش او په نیل کښې د غورزیدو واقعه بیا د فرعون په کورکښې لوئیدل. یو قبطي په سوک وهل او د مصر نه تښتیدل مدین ته رسیدل بیا علته د وه نکاح کیدل او د مصر ته په واپسۍ کښې په لارکښې د اور شعلے لیدل د غرځ نه خبرے اوریدل. د بني اسرائیلو غوا حلالول د حضرت موسیٰ او د حضرت خضرؑ په مینځ کښې ملاقات د طالوت او جالوت د ذی القرنین او د اصحٰب کهف قصے د حضرت عیسیٰؑ د درے حوار یانو حالت چه په انطاکیه کښې د وعظ د پاره تلي وو د حبیب نجار واقعه چه کافرانو شهید کړے وو د اصحاب اخدود قصه چه په سوره بروج کښې ذکر ده د اصحاب فیل واقعه د حضرت عزیرؑ سل کاله مړي او بیا ژوندي پورے قصو کښې مطرف دا غرض دے چه خلق د شرک او ګناهونو نه بچ شي او د خدائے د عذاب نه اُویریږي مخلصان نیکان شي او د خدائے په په امداد اعتبار اوکړي.

څلورم علم التذکیر بالموت و ما بعده یعنے د مرګ او د مرګ نه پس واقعات خدائے پاك چه څرنګ دا دنیا او د دنیا مخلوق پیدا کړیدے هم دغسے د دنیا د فنا کیفیت او د فنا نه پس به چه څه واقعات راځي دا هم په قرآن شریف کښې ذکر دي او څرنګ چه د انسان پیدائش د یو ے نطفه د منۍ نه شوید ے دغسے د ده روح قبض کیدل او د ده د عاجزوالے ده ته په ځنکدن کښې د جنت او دوزخ نظارے

ښکاره کیدل د ملائکو لیدل دغه د قیامت علامات د حضرت عیسی
نازلیدل د دابة الارض ښکاره کیدل د یاجوج ماجوج غلبه د اسرافیل
د شپیلۍ پوکل د اسمانونو او ستورو د غرونو او د کرو د زلزلے په وجه د
مالوچو غوندے په ندرت کیدل د ملائکو صف بسته او دریدل او د
عمل نامو په ښي او کس لاس کښي ورکول څونو د لاسرخپو په مونږ شماد
او څونو عملونه په ښه یا بد رنګ کښي ظاهریدل د خدائے په دیدار
خوشالي د جهنم کیفیات. طوق زنځیرونه گرز او نور وغیره په قرآن
شریف کښي موقع په موقع بیان شویدي

دا داسے واقعات دي چه څوا و سنا په دے ورو کی عقل کښي نه راځي
خو تاسو ته د عقل د قوت علمیت حال مخکښي بیان کړے دے امید دے
چه تاسو ته به یاد وي کوم څونو په قرآن په واقعات کښي یقین وکاو
دا کتاب د هغه لوئے خدائے کتاب دے چه کوم قوله دنیا په یو کن
فناکولے شي نو مونږ ته په تیرو واقعاتو کښي شک نشي راتلے البته د کم
ایمان خاوند کوم نه دے چه څومره سترګے وي دومره نظر لګي خدائے
د هرچاله پوخ ایمان او په خدائے باندے یقین ورکړي آمین

پنځم علم الاحکام دے یعني د بندګانو د پاره چه کوم کارونه په دین
دنیا کښي ضروري وي هغه په مونږ فرض واجب او مستحب کړه او کوم چه
ضررناک دي هغه یے مونږ له حرام کړه. د دے ضروري فرض د هغه نه کم
واجب او د واجب نه کم مستحب دي. سخت نقصاني حرام د هغه نه کم مکروه

تحریمي او د حولو نه کم مکروه تنزیهي دی او چه نفع نقصان برابر وی هغه
مباح وی ځکه الله پاك فرمائی

يُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبَاتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَائِثَ

حلال ئې کړه هغوی له پاك څیزونه او حرام ئې کړه پرې پلیت څیزونه
د دے ټولو احکامو مجموعه ته شریعت وائی ـ او شریعت په دوه قسمه دے
یو هغه دے چه پوازے د زړه سره تعلق لری لکه د خدائے پاك په
وړاندې منل او د دے د عیوبو نه پاك ګنړل دیته علم عقاید وائی ـ دویم
چه ټول اندامونه په کښې شریك وی د دے هم دوه قسمه دی یو هغه
چه د خدائے سره خاص دی لکه مونځ روژه زکواة حج شهادت په
وحدانیت جهاد کول دویم هغه احکام دی چه د خپل ادمو سره
تعلق لری د دے دویم قسم بیا دریے قسمه دی یو هغه اصلاح ده
چه د هر سړي د ځان د اصلاح سره تعلق لری لکه مثلاً غلا نه کول
دروغ نه ویل تکبر او کینه نه کول ـ خوش اخلاقی او عدل کول دے
ته تهذیب الاخلاق وائی ـ دویم چه د کور سره تعلق لری لکه د پلار او
د څوئې تعلق د ځښے او د خاوند حقوق د خرسونکي او اشنتو نکي
تعلقات امانت کښې خیانت نه کول وغیره دیته تدبیر منزل وائی
دریم هغه احکام دی چه د کلو خاریو او وطنو نو سره تعلق لری
لکه غل او بد معاش سره څه کول پکار دی ـ زنا کار لوته مار له سزا
د رعیت او د بادشاه په مینځ کښې تعلقات دیته سیاست ملك وائی

خلاصه دا شوه چه اول حکمت نظري او دوېم حکمت عملي قول پوره پوره په قرآن شریف کښې موجود دی. ظاهري پاکي او باطني صفائي حدود او قصاص میراث او طلاق دا ټولې خبرې په قرآن شریف کښې بالتفصیل ذکر دي نا پاک او حرام څیزونه هم په قرآن کریم کښې اوکوري.

راشئ د مذهب نه تحقیق وکړو. مذهب ته ناکافي ویونکو او خاص کر په مذهب اسلام توقع کوونکو! تاسو څه وایئ چه په مذهب اسلام کښې سیاست نشته دا صحیح ده چه ستاسو دا سیاست چه د بې اخلاقو او چالبازو نه ډک دے دا په قرآن کښې نشته. دا د مغرب نه په یورپي کتابونو کښې راغلے دے چه د هغې خلاصه دا ده چه سیاست او اقتدار حاصلول اول دي تهذیب الاخلاق او تدبیر منزل بیا په قلاره کیږي! او که او شو او شو کښې خیر دے خو چه اقتدار راشي نو قرآن شریف دا رفتار نه وائي بلکه صحیح فطري او مضبوط رفتار بیا نو چه اول ځان انسان کړه اخلاق زده کړه. خدائے رسول او پېژنه بیا په کور کښې د مور پلار خپلو خپلوانو حقوق ادا کړه. په بازار کښې معاملې سوداګیري او امانتونه په داسې رنګ کښې اوکړه چه په خلقو کښې او د خدائے سره کامل سړے شې بیا په دریمه درجه کښې کلي ښار حکومت او رعیت ته لاس راچوه. د غلو، زناکارو د ظالم بادشاه د هغه د امداد یانو د پاره بو اصلاحي کار د جماعت په رنګ کښې شروع کړه که بادشاه خه شه خو خه ده کښې نو ورسره جهاد اوکړه او رګ کړه او د خپلو صالحانو ملګرو نه څوک په دیني اخلاقي امتیاز بادشاه کړه

او بیا د هغه احکام په ځان جاري کړه. اوس ته خپل ځان ته خیال
تو نشی ته خپلو معاملاتو ته خپلو وعدو ته او ګوره او بیا د هغه
قوتکی ته او ګوره چه ته پر نازکوے او تا ورته زنګار نیږے اچولی
دی چه مغوی په کوم رفتار روان دی زه خو دا وینم چه تنګ سیاست
هو مېرے کوے شی خپره ده که بد اخلاق وی دروغجن وی بے نماز
وی روژه خور وی، د پلار نافرمان وی بخیل ظالم وی لس اته مړی
ئے کړے وی په غلاکیښ په حوارګی کښی په لواطت او په زناکاری کښی
قید شوی وی، د روزانه جونه پاے کښی ټارژی. شراب دی سکی
څیږو وے حرام خوړ دے ساتی حرج نشته څه مطلب دا دے چه
کښی قول سیاسی خلق دا سے وی. د بر په کښی بنه نیکان صالحان
قرآن خوان حاجیان حلال خواره هم نشته. خو سنا د مېري په شان
کښی ته د هغه خبرے څه قید نشته. ځکه دا فضلوط هستم تو کلکته
او کړی او په ظالم لوے کړی او کار خو به قابل تعریف او کړی خو چه
د دے ظالم په ځاے څوک کېنی که سنا په جماعت کښې اول اول تهذیب
اخلاق او تدبیر منزل نه دے شوے نو ته په څرنګ دا اد کړے شی
چه نیک او متقی یا په خپل جماعت کښې شریف به د دے د پاره منتخب
کړے او چه دا نشی کولے نو لازمی خبره ده چه که یو ظالم اجنبی لاړ
نو بل ظالم وطنی به پیدا شی. عجب حال ظالم ظالم دے د کور مار هم
مار دے او د ځنګل هم مار دے که په یورپ رفتار مونږ روان یو نو

څومره کور به د ویرحوا انګولا او زنده باد وو، باد به خلاص نشي
البته که قرآني رفتار شروع شي او خلق په مده کښې هر هر سړے
او خپله ځان با اخلاصه خدای فرسه خوش معامله کړي او دبیا د کور
حالت خو کوري نو کله سبا دا دوګني او ظالم بادشاه به د ویر زرسم
شي. په یورپي سیاست کښې جنګونه دي او په قرآني سیاست
کښې امن دے.

دا مسئله په قرآن شریف کښې په ډیرو مقاماتو کښې حل کړې
شوې ده که خدای ته منظوره وه او تفسیر شروع شه نو تاسو
ته به ډیر چونه پیچ قبرونه او د هغې مرګ به ښکاره شي او تاسو به
بې ساخته دا اروایې چې

الله اکبر الله اکبر لا اله الا الله و الله اکبر
الله اکبر و لله الحمد

# په تفسیر کښ د امداد کوونکو نومونه او شکریه

| په مقدمه کښ ذکر د امداد کوونکي حضرات | | | په پاره اول کښې ذکر د کوونکي حضرات | | |
|---|---|---|---|---|---|
| نمبر شمار | نوم ونه | رقم | نمبر شمار | نوموونه | رقم |
| (۱) | قابل احترام والی سوات | ۱۰۰ روپئ | | | |
| (۲) | قابل احترام مهتر چترال | ۱۰۰ // | | | |
| (۳) | محمد فرید لودهی شیرواڼ | ۴ // | | | |
| (۴) | عجب نور صاحب تل | ۵ // | | | |
| (۵) | مدارالله صاحب مردان | ۸ // | | | |
| (۶) | سخاوت شاه بکوی بالا | ۴ // | | | |
| (۷) | نور جمال خان کوهاټ | ۱۰ // | | | |
| (۸) | مسماة بادشاهان کوټرپانی سوات | ۱۰ // | | | |
| (۹) | شرکاء درس قرآن شریف رستم | ۴۰ // | | | |
| ۱۰ | ایم سید غفوات باچا صاحب صدر درس قرآن شریف رستم | ۱۰۰ // | | | |
| ۱۱ | شیخ محمد ابید خان شاه پیر دالک | ۱۰۱ // | | | |
| ~~۱۲~~ | ~~ایم مرادالله ـ مردان~~ | ~~۳~~ | | | |
| ۱۳ | ایم قمرالدین ـ بازار درگی | ۲-۴ | | | |

# اظهار حقیقت

د قرآن شریف د تفسیر په سلسله کښې چه کوم تکالیف پیش دی اول نه اول
نو ځما کم علمي دوه او بله دا چه چرته روځ د دیني کتابونو سره شوق ورځ کم د
بل د کاغذ قلت - په چهاپ خرس داسې مشکلات دي چه

د خدائے په لوئے کوم به کښینږی

په عقل ګرانه ده ځما د اشنا مینه

خو بیا هم سره د دې چه ما علمي شوق لرونکو ته خپل مقدمه تقدر ے
لاهم نه ده رسولے د هغوی د طرف نه په ما اعتماد او ځما امداد داخبر
ښکاره کوی چه انشاء الله تعالی زه به حسب استطاعت په تفسیر کښې
کامیاب شم - که په تفسیر کښې ځما نه علمي کوتاهي اُشي نو علماء کرام د ے
ما اګاه کړی زه به انشاء الله د هغې تعمیل اُکم او په بل طباعت کښې
به د هغې اصلاح اُکم او د خپل راهنما به شکریه ادا کړم

زه دا امداد کونکو حضراتو دلی شکریه ادا کوم او امید لرم چه هغوی به ما
نه هیروی تول علمي شوق لرونکی به دا کپی هسے خپل او ګلاړی او د دوسیرا
به اوکی - جزاهم الله جزاءً کثیرًا

## في الحال تصنیفات

(۱) "حقائق" قیمت دوه انے (۲) "داستان معلمین" قیمت دوه انے

(۳) مقدمه تفسیر پښتو ۸ (۴) "میری زندگی کے تجربے" (زیر طبع) ۳

(۵) "لیډرز علماء کرام اور دینی دنیوی تعلیم" (زیر طبع) ۴

(دارالتصنیف رستم - مردان - حبیب الرحمن ایچ - پی - ایچ - اے فاضل دیوبند)